**پښتوژبه خوږه ده اوخواږه يې بنسټونه**
**خبرې يې خوږې دي اوخواږه يې تعبيرونه**

# خوږه ژبه

- معاني .
- بيان .
- بديع .
- دشعرډولونه .
- ځيني ادبي اصطلاحات .

عبدالرحيم مسلم دوست

**د کتاب پېژند نه :**

د کتاب نوم: خوږه ژبه .
لیکوال: عبد الرحیم مسلم دوست .
د چاپ کال: ۱۳۹۳ ل هـ.
د چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه.
د چاپ وار: شپږم. (له نویو زیاتونو سره).
خپرندوی: سپین غر خپرندویه ټولنه.
پته: جلال اباد ننګرهار.
د ګرځنده شمېره: ۰۷۷۷۷۵۱۹۹۱

# ډالۍ

هغوی ته چې اسلامي احساس لري،
پښتو وايي، پښتولولي او پښتو ليکي.

## بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله الذی خلق الإنسان علمه البیان والصلاة والسلام علی من أرسل بجوامع الکلم فبلغ الرسالة و أدی الامانة، محمد وعلی آله و أصحابه الذین ساروا علی نهجه القویم.

أما بعد :

**انســان له نورو حیواناتو څخه په عقل او علم جلاکیږي، عقل د علم لپاره وسیله ده، د عقل مظاهر حواس دي، علم په زده کړه او زده کړه په افهام او تفهیم ســره کیږي . د افهام او تفهیم لپاره ښــه آله او وســیله خبرې دي؛ خبرې د خولې په مخارجو (وتوځایو) سره کیږي؛ په مخارجو کې مهمه او اساسي دنده د ژبې ده چې انســان پرې مختلف غږونه اداکوي، د دې غږونو له ترکیب او تالیف څخه کلمې او لفظونه جوړیږي، د کلمو له یوځای کولو څخـه کلام او جملـه جوړیږي، دې جملې او کلام تـه خبرې ویـل کیږي، او دا خبرې په ژبې او لغت سره یادیږي. څرنګه چې کائنات او موجودات ګڼ او مختلف دي، نو د دې لپاره چې هر یو وپیژنو**

او يو لـه بلـه يې توپير وکړو، نومونـه يې هم جلا جلا دي، چې جمادات، مائعات، غازونه (لوګي)، هواګانې.... ټکې شـامل دي، ځينې ذي روح (ژوندي) دي او ځينې بې روحه، ځينې ذوی العقول (د عقل والا) دي او ځينې غير ذوی العقول .....

د کائـناتو په دې ګڼه ګوڼه کې د انسانانو د افهام او تفهيم لپـاره ژبې پيـدا شــوې دي. د وخت پـه تېرېـدو ســره هرې ژبې پرمختګ کړی دی. د ژبو د سمو لوستلو لپاره بنستونه، ژبدودونه او قوانين جوړ شــوي دي. کله چې يوه ژبه روغه وي او د ډول ډول لاملونو له کبله تاواني شــوې او يا رنګه شــوې نه وي، بلکې په لومړني فطري حالت پاتې وي، د هغې خپلو ويونکو لپاره د دې قوانينو اړتيا کمه ليدل کېږي. په هره ټولنه کې چې څوک زېږېږي او لويېږي هغـه ژبـه پـه اورېـدلو او ويلو زده کوي. د بېلګې پـه توګه: يوماشـوم چې کله په خبرو راشـي او افهام او تفهيم وکولای شـــي، هغه وايي: بابا راغی، ابۍ راغله. هغه مذکر او مؤنث نه پېژني، خو پـه خبرو کې يې خپلـه پـه فطري زده کړه توپير کوي. ژبدود اوژبنيو قوانينو ته په درې صــورتونو کې زياته اړتيا ليدل کېږي:

۱- هغه وخت چې ژبه ګډه وډه شـوې وي او د رنګېدو او تغير وېره يې وي.

۲- د يوې ژبې اديبانو او د ادبي ارزښتونو رابرسېره کوونکو ته د دې زياته اړتيا ده چې د هغې ژبې په ټولو ژبنيو بنسټونو وپوهېږي.

۳- کله چې پردۍ ژبه زده کوي، نو د هغې ژبې ژبدودونه او بنسټونه به ارومرو زده کوي.

د دې لپاره چې انسانان سره وپېژني، دنړۍ په ابادۍ او د علومو په استنباط او ترويج کې زيات ابتکارات، انکشافات او اختراعات منځ ته راشي، الله تعالی انسانان په مختلفو پرګنيو، قبيلو، پښو، خېلونو او قومونو وېشلي دي او جلا جلا ژبې او لغتونه يې ورکړي دي، چې د هر چا لپاره د جلا شخصيت او تشخص لامل ګرځېدلی دی.

هره ژبه دوه ډوله ژبدودونه او ممېزات لري:

۱- هغه چې له نورو ژبو سره مشترک وي.

۲- هغه چې د يوې ژبې ځانګړي وي او په نورو ژبو کې نه وي.

دا يوه فطري غريزه ده چې د هرې ژبې ويونکي په خپله ژبه وياړي، اند پکې کوي، خوبونه پکېويني، پرې ښه پوهېږي؛ هغه تعبير او د زړه او ذهن ترجماني چې په خپله ژبه يې کولای شي په پردۍ ژبه يې نه شي کولای. نوله همدې امله هر څوک غواړي چې د هغه ژبې ته خدمت وشي، او دا د تحسين، تقدير او ستاينې وړ کار دی. يوې ژبې ته کار کول هغه وخت د غندنې وړ وي، چې نورې ژبې ياد هغو ويونکي يوائې د ژبې له امله سپک وګڼل شي،

وغندل شي، تېرى پرې وشي او حقوق يې تلف شي؛ که دانه وي، نو د هرې ژبې ويونکي دا حق لري چې خپلې ژبې ته خدمت او له حقوقو څخه يې دفاع وکړي.

نوزه هم د فطرت له دې پنځونې څخه جلا او مستثنا نه يم چې وغوارم خپلې ژبې (پښتو) ته خدمت وکړم.

اګر چې له ما څخه مخکې ډېرو نوميالیو پښتو ژبې ته د يادونې او د قدر وړ خدمتونه کړي دي او کوي يې، خو خدمت کې هڅه او هاند هيڅکله پای نه لري؛ زه هم غوارم هڅه وکړم چې په دې خدمت کې د وس مناسب ونډه واخلم.

ځينې پښتانه دپښتو په هکله په افراط اوځينې په تفريط کې واقع شوي دي. دځينو ښاغليوله سوچه اونږه پښتو سره بې کچه مينه ده، اوځينو يې پښتو بېخي شاته غورځولې ده، د پښتو مالوف، اسان او روان لغتونه پرېږدي او پردي لغتونه استعمالوي، پرې وياړي او حتی په ساده پښتو شرمېږي. او ځينې خولا د اعتدال پولو نه دومره تېر شوي دي چې په خپلو لیکنو کې د پرديو لغتونو د زيات استعمال له امله که يوکال وروسته خپله ليکنه وګوري، نو پرې نه پوهېږي، او دې ته اړتيا پېښېږي چې کومه ډکشنري او قاموس وروسپې وګوري.

زما په اند که څوک غواړي چې يوې ژبې ته خدمت وشي او ژبه پرمختګ وکړي، لاندې مواردو ته په پاملرنه کېدای شي.

۱- د ژبې لرغوني ادبي ارزښتونه دې رابر سېره شي.

۲- د ژبې او ژبپوهنکو ناوړه دودونه دې اصلاح شي.
۳- لغتونه، متلونه، شعر او نثر دې راټول او جلا جلا قاموسونه، موسوعات او معاجِم دې پکې ولیکل شي.
۴- زيات او معياري ليکل دې پکې وشي.
۵- له نورو ژبو نه دې ارزښتناک آثار ورته راوژباړل شي .
۶- دا ژبه او د دې ادبي ارزښتونه دې نورو ژبو ته وژباړل شي .
۷- د خپرونو ټولې وسيلې لکه : ورځپاڼې، مجلې، راډيو، ټيليويژن، کمپيوټر، انټرنټ... دې د دې ژبې په خپرولو کې په کار راوستل شي .
۸- دا سې نوي، اسان، روان، مالوف، او مانوس لغتونه دې پکې را زرغون او مروج شي، چې لرغونی بنسټ ولري.
۹- عربي عام فهمه، مالوف او مانوس لغتونه دې پکې پرېښودل شي، ځکه چې هغه د دې ژبې يوه برخه ګڼل کېږي او د ډېر استعمال له کبله مشترک ګرځېدلي دي .
۱۰- ديني ارزښتونوته دې پوره پاملرنه وشي، له ژبې څخه دې جلا ونه ګڼل شي او راودې ژباړل شي .
۱۱- د لرغوني او معياري استعمال په بنسټ دې ژبدودونه، قوانين او ضوابط ورته کېښودل شي.
۱۲- له نورو ژبو سره دې پرتله شي او له مشترکو ارزښتونو څخه دې يې ګټه پورته شي.

۱۳- د ژبپوهنکيو اقتصـادي ودې (تجارت، صـنعت، زراعت، له ځمکنيو زېرمو څخه ګټه اخيسـتلو، صـادراتو.....) ته دې پاملرنه وشي.
۱۴ - رکود او جمود دې پکې نه وي او تل دې د رغنده اصــلاح، نوښت او ابتکار جوګه وي.
۱۵- دژبپوهنکيو رسمي او تعليمي ژبه دې شي؛ تعليم اوتربــيې (ښوونې او روزنې) ته دې پکې زياته وده ورکول شي.
۱٦- حکومتي سر پرستي دې ولري او سياسي حقونه دې يې تر لاسه شي.
۱۷- د ژبپوهانو يو شامل کتونکی پلاوی دې ولري چې تل له ژبې اوژبپوهنکيو ســره کلکې اړيکې ولري او پورتنيو مادو ته د عمل جامه ور واغوندي.

هره ژبه دمعنا او تاديې له مخې توپير لري. ځينې خبره خوږه، څرګنده او اغېزناکه او ځينې ترخه، مبهمه او پېچلې وي.

د دې لپاره چې د ژبې له معنا او تاديې نه عيوب ليرې شــي، خوږه، اغېزناکه او څرګنده شــي، ژبپوهانو ځينې قوانين او بنسټونه ايښي دي چې زده کړې پورې اړه لري اود معاني او بـيا ن علم بلل کېږي، چې شعر او نثر دواړو ته شامل دی.

د پښــتو د صرفي او نحوي بنســټونو په هکله ډېرو پوهانو ډېر څه ليکلي دي او ليکي يې؛ که مونږ ته فرصــت ميســر شــو په

راتلونکي کې به مونږ هم ان شاءالله د جُهدالمُقِل په حیث پکې برخه واخلو او یو ژبښود به ولیکو.

په دې بحث کې مونږ د پښتو معاني، بیان، بدیع اود شعر ځینې اړخونه څېړو او داپه دوه ډوله دي :

۱- هغه چې د پښتو، عربي او نورو ژبو تر منځ د ژبو د فطري جوړښت له امله یو شان او مشترک دي.

۲- هغه چې دپښتو ځانګړتیاوې ګڼل کېږي.

په دې کتاب کې چې د بېلګو په توګه کوم شعرونه راوړل شوي دي، که د نورو شاعرانو دي، نومونه یاماخذونه یې په خپل خپل ځای کې یاد شوي دي. او له کومو سره چې نوم یاماخذ نشته هغه د راقم الحروف دي. (پرته له لنډیو ځکه چې د لنډیو شاعر معلوم نه وي) اګر چې ما ته دابښه برېښېده چې ګرد مثالونه او بېلګې د نورو پخوانیو او اوسنیو شاعرانو وای، خو داکار څه ناڅه ستغ او پېچلی ؤ ځکه چې زیاتې پلټنې ته پکې اړتیا وه په تېره بیا د بدیعو صنعتونو په بحث او انتخاب کې د پلټنې ډېرې ستړیا او سرګردانۍ ته اړتیاوه، نو د اسانۍ لپاره مو په اکثرو مواردو کې خپل مات ګوډ شعرونه د بېلګې په توګه وړاندې کړي دي . بله داده چې دځینو صنایعو بېلګې پښتو کې ببخي نشته اومالومېږي ځل لپاره پکې لیکل کړي دي چې دکتاب راتلونکي بحثونه به تاسو ته دا حال پخپله ووایي.

مونږ هڅه کړې ده چې هر مفهوم او صـــنعت لږ تر لږه یوه بېلګه ولري، اوځینو ځایونوکې دتنوع اوارتیا له مخې یومفهوم ته څوبېلګې هم وړاندې شــوې دي . په ځینو ځایو کې مو ځینو مفاهیمو ته د پښتو نوي نومونه ایښي دي او ځینې نور مو له دې وېرې پرې ایښــي دي چې پېچلي او بې خونـده نـه شــي . ځینې مفاهیم او صنایع خو پښتو کې مخکې بېخي څېړل شوي نه دي.

اګر چې له ما څخه مخکې ځینو ښاغلیو د پښتود بـیا ن او بدیع په هکله لیکنې کړې دي او په خپل وخت او خپل ځای کې د قدر وړ دي، خو هیڅ لیکنه له نیمګړتیاو خالي نه وي، زه هم خپله لیکنه له نیمګړتیاو خالي نه بولم، خو دومره ارو مرو ویلای شــم چې د دې او له دې نه مخکنیو لیکنو تر منځ توپیر شــته، چې د کمیت او کیفیت کچ زه د هغو لوســتونکیو پرېکړې ته پرېږدم چې د دې او نورو لیکنو پرتلیزه مطالعه وکړي .ځینې ښــاغلي خو په ځینو مفاهیموبېخي پوه شــوي نه دي ، مفهوم یو اومثال یې دبل شـــي دی ، چې بېخي ســره ســمون نه خوري . ځینې ځای کې په تعریف کې خطا شــوی ، ځینې ځـای کې مثـال کې اوځینې کې دواړوکې . مونږ کوښښ کړی دی چې هم تعریف سم وي اوهم مثال له تعریف ســره ســم اومطابق وي . همدارنګه زیات اونوي مفاهیم موڅېړلي دی .

په دې وروســتیو کې ځینې خلک یا دمعلوماتو د نیمګړتیا له امله اویا دنورولاملونوله کبله د معانیو، بیان او بدیع علم ته

پاملرنه نه کوي او ښه ورته نه برېښي، خو دا خبره ناسمه ده او په دې علومو پوهه ډېره زیاته اړینه او ګټوره ده.

که مونږ د مخکنیو نومیالیو لکه: عبدالرحمن بابا، خوشحال خان خټک، عبدالحمید بابا او نورو د کتابونو ژوره مطالعه وکړو، دا به راته جوته شي چې هغوي له دې علومو څخه څومره ګټه پورته کړې ده!.

په وروستنیو کې هم د مشهورو شاعرانو کلام له دې څخه خالي نه دی، نو په کار داده چې لیکوالان او شاعران له دې علومو سره اشنا وي، تر څو ترې ګټه پورته کړي.

د معاني، بیان اوبدیع بنستونه په هرې ژبې کې شته، څه نسبي توپیر ارو مرو لري، خو اساسي بنستونه د ډېرو ژبو تر ډېره حده یو شان دي.

د ژبې څرګندوالی، خوږوالی، د معنا تحسین او ښکلا په دوه ډوله ده:

۱- هغه چې لفظ سره اړیکې لري.

۲- هغه چې معنا سره اړیکې لري.

لفظ سره چې اړیکې لري (فصاحت) بلل کېږي.

او معنا سره چې اړیکې لري (بلاغت) بلل کېږي.

د دې لپاره چې ښکلې، څرګندې او له وخت او موقع سره برابرې خبرې وپېژنو باید چې (فصاحت او بلاغت) وپېژنو.

# فصاحت

## د فصاحت لغوي معنا

فصاحت، د عربي ژبې کلمه ده او مصدر دی. ماضي يې ( فَصُحَ ) او مضارع يې ( يَفصحُ ) راځي . په لغت کې څرګندوالي، وضاحت او ښکاره کېدو ته ويل کېږي.

فصاحت لرونکي سړي ته فصيح ويل کېږي. مذکر جمع يې فُصحاء، فصاح او فُصُحْ ده او مؤنث يې فصيحة دی، مؤنث جمع يې فِصاح او فصائح ده، فصاحت د شخص، ژبې او خبرې درې واړو صفت کېدای شي.

لکه : فصيح سړی، فصيحه ښځه، فصيحه ژبه او فصيح کلام يا فصيحه خبره او وينا ، په کومه ورځ چې اسمان شين وي او څه وريځ او ګرد نه وي نو هغې ته يوم فصيح او يوم فُصح ويل کېږي .

د لنګې وروره چې کله ختم شي او خالص شېدې شي، نو عرب وايي: (أفصح اللبن) شېدې خالص (نږه) او څرګندې شوې همدارنګه کله چې له شېدو څخه زګ لېرې شي، نو وايي: (فَصُحَ اللبن) . او مُفصح او فصيح هم ورته ويل کېږي . مېږه، اوزه يا اوښه چې کله لنګه شي، وروره يې ختم شي او خالص شېدې پيل

شي، نو وايي: ( اَفْصَحَتِ الشاةُ ) يا ( فصحت الناقة ) . عرب وايي: ( افصــح الصــبح ) ســبا ځرګندشــو، هر شــی چې ځرګند، واضــح اوخالص وي هغه ته فصيح ويل کېږي.

## د فصاحت اصطلاحي معنا

فصــاحت په کلمه، کلام او متکلم درې واړو کې راځي چې د هر يو په پېژندلو سره يې اصطلاحي معنا ځرګنديږي .

## لومړی: په کلمه (مفرد) کې فصاحت

په مفرد يا کلمه کې فصــاحت دادی چې غږونه يا توري يې له درې عيبونو څخه خالي وي :

(الف) : تنافر .

(ب) : غرابت .

(ج) : د قياس مخالفت .

# ۱ - تنافر

تنافر په لغت کې کرکې ته ويل کېږي. او په اصطلاح کې داسې کړکېچنو غږونو ته ويل کېږي چې په ژبه سخت او دارانده وي او په غوږونو هم دارانده لګېږي. لکه:

ګروه مې هغه لرغونی دی
اوس هم کروړ په لرغونه يم

پورانی د ښمن چې وايي
زه له ګروهه په اړه يم[1]

# ۲ - غرابت

غرابت په لغت کې نا اشناتوب، نابلدۍ او مسافرۍ ته ويل کېږي. په اصطلاح کې داسې نااشنا، وحشي، نامانوسو او نامالوفو کلمو او الفاظو ته ويل کېږي چې يا ډېرې معناوې ولري او يوې خوا ته هم څه قرينه او نخښه نه وي او يا لغوي پلټنې ته پکې اړتيا پيښېږي. لکه:

چې له برمه يې زمري رېږي ځنګلو کې
له اوکو به يې ډاري تيرو جبار[2]

---

۱- پټه خزانه: ۷۲-۷۴.

[2] پټه خزانه: ۴.

# ۳- د قياس (پرتلې) مخالفت

دقياس مخالفت دې ته ويل کېږي چې د ژبې له قانون او ژبدوده خلاف وي اود ژبې په نوروبنستونو نه پرتله کېږي .

لکه :

لاړه ځواني لاړه د ځوانۍ په هوســونو کې
حال د زړه به وايمه ســاړه ساړه آهونو کې[1]

دلته ( ساړه ساړه )که داهونو صفت وي نو سړو سړوپه کار ؤ اودبل شي صفت هم سم نه راځي .

# دويم: په کلام کې فصاحت

په کلام ياجملې کې فصــاحت دادی چې له څلورو عيبونو څخه خالي وي :

(الف ) : د ترکيب ضعف .
( ب ) : د کلمو تنافُر .
( ج ) : تعقيد .
( د ) : د تکرار او اضافتونو زياتوالی .

---

[1] سپينې خبرې: ۷۴.

# ۱- د ترکیب ضعف

د ترکیب ضعف دا دی چې د ژبې له صرفي او نحوي بنسټونو څخه مخالف وي.
لکه:

داقــطــعــه بــه مــطــولــه وه حــنــانــه
د اشـــنـــای لــه غـمـه نـه یـم زه اوزګـاره[۱]

دلته میرزا عبدالحنان مذکر دی او (اوزګاره) د مؤنث لپاره راغلي، نو ترکیب ناسم دی. یا لکه دا نثر: راغی احمد رایې وړ کتاب. دا په شعر او ځینو ځانګړیو ترکیبونو کې سم دی خو په عامه محاوره کې ناسم دی او سم یې دا سې دی:
احمد راغی، کتاب یې راوړ. ځکه چې پښــتوکې فاعل مخکې او فعل وروسته وي نو (احمد) فاعل او (راغی) فعل دی. همدارنګه پښتو کې مفعول مخکې او فعل وروسته وي نو (کتاب) مفعول دی، (یې) ضمیر او (راوړ) فعل دی.

---

[۱] د مرزا عبدالحنان بارکزي دیوان: ۲۳۰.

# ۲ - د کلمو تنافر

د کلمو تنافر هغو کلمو استعمال دی چې په ژبه سختې او درنې وي او په غوږونو هم درنې لګېږي .
لکه :

دایې تور داسې د روهو ي
زه مؤمن ستاسي په تله یم[۱]

# ۳ - تعقید

تعقید په لغت کې غوټه کولو ته ویل کېږي او په اصطلاح کې په خبرو کې داسې پېچلتیا او غوټې ته ویل کېږي چې معنا یې څرګنده نه وي او زیاتې پلټنې ته پکې اړتیا پېښېږي .
لکه :

په ویرژلو لورنه کړې په زړه کراړ یه
پرنتلیو اوروې د غم ناتار



---

۱ پټه خزانه: ۷۴.

هغه غور په وړ نا تار د واکمن کښېوســـت
هــغــه غــور شو د جــانــدم غــونـدې ســـورار [۱]

## ۴- تکرار او د اضافتونو زياتوالی

کله چې کومې خبرې کې دالفاظو بې ځايه تکرار او ډېر اضــافتونه وي داعيب دی اوداکلام فصـــيح نه ګڼل کېږي . بې ځا يه تکرار خوهرڅوک پېژني اومثـال راوړلو تـه يې اړتيـا نشـــتـه، اود ډېرو اضافتونو راوړلو بېلګه دالاندې عبارت دی :

( د افغانستا ن دکابل دپوهنتون دطب پوهنځي دمحصلينو دکلنۍ ازموينې دوروســتـه کېدو له کبله دنوې نېټې د ټاکلو دپخواني هيئت دبې غورۍ دناوړه پايلو د اندېښـــنو دله منځه وړلو لپاره نوی هيئت و ټاکل شو ) .

دې عبارت کې دډېرو اضـــافتونو راوړلو خبره بې خونده کړې ده، نوځکه داعبارت فصيح نه ګڼل کېږي . همدا خبره په لږو اضافتونو اولنډو جملو راوړلو هم کېدی شي .

داډول جملې اوعبارتونه مونږ په رسنيوکې ډېر اورو او لولو.

---

[۱] - پټه خزانه: ۴۲.

# دریم: په متکلم (وینا کوونکي) کې فصاحت

په متکلم کې فصاحت دا دی چې: دا سې ځواک او ملکه ولري چې د خپل مقصود څرګند تعبیر پرې وکړای شي. د دې مثال په لیکلو کې نه راځي بلکې اورېدلو پورې اړه لري، لکه متکلم تــنــتــنی نه وي، بندبند نه کېږي او څرګنده روانه او بې تکلفه وینا وکړای شي.

او دا اورېـدلو پورې اړه لري، پـه لیکلو کې نـه راځي. فصاحت د ژبې له تلفظ سره تعلق لري چې په کلمه، کلام او متکلم درې واړو کې مخکې څرګند شو.

د بیان او معانیو کتابونو کې د فصــاحت په تعریف کې د نورو شــرطونو پـه ترڅ کې د تنـافر الحروف او تنـافرالکلمـات د نشتوالي شرط هم لګېدلی دی او بــیا یې معنا داسې کوي چې: په ژبه ســخت او درانده توري او الفاظ پکې نه وي. لکه مخکې مو چې وویل ، ځینو صــاحبانو له تنافر نه د نظا فت او اخلاقو کرکه اخیستې او مثال کې یې د خوشحال خټک دا بیت راوړی چې:

لږ خوراک تنکی کوي لمې بویـه د ښــځې
نـر هـغـه چـې ډېـر خـوراک کـا ډېـرې خـړې

یا یې د عبدالرحمن بابا دا بیت راوړی:

چــې هــنــر ګــنــي یــاري د زوره ورو
زه عــبـد الـرحـمـان کـومـه بـول پـه داهـنـر

لکن داسـمه نه ده، په دې دواړو بیتونو کې هیڅ تنافر نشته، ځکه چې تنافر نه مقصد لغوي تنافر او کرکه ده نظافتي او اخلاقي تنافر مطلب نه دی ( خړې ) او ( بول ) اګر چې د نظافت په لحاظ د کرکې وړ الفاظ دي، خو لغوي تنافر نه لري او د فصاحت خلاف نه دي، ځکه چې روان، په ژبه اسـان او مفهوم یې څرګند دی .کله کله یو شـي ناولی او د کرکې وړ وي او ډېر لاندې او بې کاره وي، خو لغوي تنافر نه لري او یو بل شـی به ډېر معزز، اوچت او شریف وي خو نسبي تنافر به لري. لکه : ( خر او پړانـګ ) د خر کلمه نسبت پړانـګ ته افصحه ده، ځکه چې په ژبه ډېره اسانه او روانه ده او نسبت خر ته د پړانـګ کلمه په ژبه سخته ده. اګر چې د نظافت اوشرافت په لحاظ خر پړانـګ سره نه پرتله کېږي او پړانـګ پرې ښه ګڼل کېږي .

# بلاغت

## د بلاغت لغوي معنا

بلاغت د عربي ژبې یوه کلمه ده او مصدر دی. ماضي یې ( بَلَغَ ) او مضـارع یې ( یَبْلُغُ ) ده. لغوي معنا یې ښـه والي او کره والي ته رسـېدل ده، چې د ژبې په عبارت د زړه تل ته ورسـېږي . بلاغت لرونکی سـړی ( بلیغ ) بلل کېږي . جمع یې (بُلَغَاء) ده، مؤنث یې

(بَلِيْغَــةٌ) دی، جمع يې (بلاغ) او (بلائغ) ده، و ينا ته (بليغه وينا) او کلام ته (بليغ کلام) ويل کېږي .

## د بلاغت اصطلاحي معنا

اصطلاح کې بلاغت هغو فصيحو خبرو ته ويل کېږي چې د حال ، مقام او موقع له مقتضا او غوښتنو سره موافق اومناسبې وي بلاغت په کلام او متکلم کې وي .

## ۱ - په کلام کې بلاغت

په کلام کې بلاغت دې ته ويل کېږي چې :

(الف) : د ژبې د قوانينو مخالفت پکې نه وي.

(ب) : په معنا کې سختې او درندې خبرې پکې نه وي.

(ج) : داسې خبرې پکې نه وي چې معنا يې څرګنده نه وي او يا له مقام او حال سره مناسبې نه وي .

(د) : پېچلې خبرې پکې نه وي .

# ۲ - په متکلم کې بلاغت

متکلم کې بلاغت دادی چې : داســې ځواک او ملکه ولري چې بلیغې خبرې راټولې کړي او زړه پورې تالیف او ترکیب او له خیال او مقام سره مناسب یې استعمال کړي .

له مخکنیو تعریفونو څخه څرګنده شوه چې فصاحت لفظ پورې اړه لري او بلاغت، لفظ او معنی دواړو پورې اړه لري . او د دې دواړو منځ کې نسبت د عموم خصوص مطلق دی، نو هر بلیغ فصیح دی او هر فصیح بلیغ نه دی، بلکې ځینې فصیح او بلیغ دواړه وي او ځینې یې فصیح وي، خو بلیغ نه وي، نو د معانیو او بیان په اعتبار کلام ته فصیح او بلیغ ویل کېدی شي .

پښتنو لیکوالانو او ادیبانو کې ځینو صاحبانو بدیع دبلاغت یوه نوعه ګڼلې ده، خو داخبرناسمه ده. بدیع یو خارجي شی دی چې د کلام د ښکلا او ښایست پورې اړه لري او تفصیل به یې وروسته راشي .

ددې لپاره چې کلام بلیغ او ښکلی شي د ځانګړیو بنسټونو پېژندلو ته اړتیا ده.

مونږ په دې بحث کې د پښتو ژبې معاني، بیان، او بدیع څېړو . د څرګندې معنا او د تحسین د ادا علم په درې ډوله دی :

۱- د معاني علم.
۲- د بيان علم.
۳- د بديع علم.

# معاني

## د معاني لغوي معنا

معاني جمع ده او مفرد يې معنا دى. په لغت کې څرګندولو، اسانولو، د يو شي انجام، اخر او مقصد ته ويل کېږي.

## د معاني اصطلاحي معنا

په اصطلاح کې معاني هغه علم دى چې د هغه په واسطه متکلم خپله خبره په داسې انداز کې وکړي چې کومه معنا يې مطلوبه وي هغه څرګنده شي او اورېدونکی د معنا په استنباط کې خطا نه شي، بلکې خبرې نه هماغه معنا واخلي کومه چې د متکلم مراد وي، د بېلګې په توګه:

ذکي، هوښيار او بيدار مخاطب سره لنډې او د مطلب خبرې په کاروي او زيات تفصيل او اوږدولو ته اړتيا نه پېښېږي،

خو غبي او ناپوه لېږه تفصـيلي او اوږدو خبرو ته اړتيا لېدل کېږي. نو که همداسې وشـول، داد حال او مقام د مقتضـا مطابق خبرې دي او بليغې ګڼل کېږي . که د دې خلاف وشول، نو د حال او مقام د مقتضا خلاف دي او بليغې خبرې نه ګڼل کېږي .

## د کلام ډولونه

د حکم په اعتبار کلام په دوه ډوله دی :

۱- خبر .

۲- انشاء .

## (۱) خبر

خبر هغه کلام يا خبرو ته ويل کېږي چې د اثبات يا نفې حکم پرې شوی وي او په يو وخت کې د ريښتيا او درواغو احتمال لري.لکه : احمد راغی، ګل نواز ناروغ دی، شين ګل نه ځي .

خبر د ډېرو غرضونو او ګټو لپاره ويل کېږي چې سالم عقل او ذوق سره پېژندل کېږي او ځينې يې په لاندې توګه يا دوو:

**۱ - د ناخبر خبرول**. لکه : يو ناخبره شـخص ته ووايې : کابل د افغانستا ن پلازمېنه ده .

**۲ - د تساهل، غفلت او سستۍ مخنيوی** . کله خبر ددې لپاره وي چې متکلم مخاطب ته دا ښــايي چې زه هم خبريم خودې ته يې پام رااړوي چې تادابې غوري ولې کړې ده چې زه دې نه يم خبرکړی . لکه يو زوی خپل پلار ته د خپل برياليتوب حال نه وي ويلی خو پلار يې له بلې لياري خبر شــوی وي او خپل زوی ته وايي : ته بريالی شوی يې .

**۳ - اســتعطاف (د مهربانۍ غوښــتنه)**. لکه چې يو څوک وايي : ای ربه ! زه ستا مهربانۍ ته محتاج يم. نوالله تعالی زمونږ له اړتيا او احتيا جه خبردی خودلته دمهربانۍ دغوښــتنې لپاره داسې ويل کېږي .

**۴ - هڅونه** . لکه : عالم او جاهل برابر نه دي .

په دې هرڅوک پوهېږي چې عالم اوجاهل ســره برابرنه دي خودلته دشاکرد اويوچا دهڅونې لپاره داسې ويل کېږی .

**۵ - د عاجزۍ څرګندونه** . لکه : ای ربه ! زه بوډا او کمزوری يم . الله تعالی خبر دی ،خو په دې کې د بې وسۍ څرګندونه ده .

**۶ - د افســوس څرګندونه** . لکه : د يو سړي له تاوانه خلک خبروي، خو هغه وايي : ما تاوان کړی دی .

**۷ - د خوښۍ څرګندونه** . لکه : ګرمي ولاړه، هوا ښه شوه .

۸ - **توبيخ او رټنه** . لکه : خلک سپوږمۍ ته وختل، ته لا ويده يې!.

۹ - **د توپير ځرګندونه** . لکه : تور او سپين سره برابر نه دي .

۱۰ - **وېرول** . لکه : د درواغو عواقب ډېر بد دي .

۱۱ - **فخر** . لکه : زه مسلمان يم، زه پښتون يم....

۱۲ - **ستاينه** . لکه : ستا ښو اخلاقو په ماډېر اغېز کړی دی .

۱۳ - **غندنه** . لکه : روسان افغانستان باندې د يرغل له امله د لوی جرم مرتکب شوي دي . او داسې نور .

# مخاطب سره د خبرو کولو ځرنګوالی

ځرنګه چې له خبرو نه مقصد د مخاطب پوهول وي، نو خبرې کوونکی بايد د مخاطب په حالاتو داسې ځان پوه کړي لکه ډاکټر چې د ناروغ تشخيص کوي، او بيا مناسب دارو ورکوي .

خبرې بايد د حاجت او ضرورت په کچ وي ، نه دومره زياتې اوږدې وي چې هسې بې ګټې وخت ضائع کړي او نه دومره لنډې وي چې غرض افاده نه شي کړای او مخاطب پرې ونه پوهېږي .

مخاطب په درې ډوله دی :
۱ - تش ذهنی .
۲ - متردد .
۳ - منکر .

او خبر هم په درې ډوله دی :
۱ - ابتدائي.
۲ - طلبي.
۳ - انکاري .

**۱ - تش ذهنی یا خالي الذهن** : هغه چا ته ویل کېږي چې دخبر په هکله هیڅ معلومات نه لري او ناخبره وي . په دې صـورت کې تاکید ته هیڅ حاجت نشته، نو په خبرو کې باید د تاکید توري استعمال نه شي . لکه یو ناخبر شخص ته وایې :

الف : احمد د محمود وروردی .

ب : جلال اباد د ننګرهار مرکز دی .

دې ډول خبرتـه ( ابتـدائي ) ویـل کېږي او دا ځکـه چې مخاطب سره په دې هکله مخکې هیڅ سوچ نه وي .

**۲ - متردد** : هغه چا ته ویل کېږي چې د یو خبر په هکله شــکمن وي او غواړي چې باور یې راشي، نو په دې وخت کې باید په کلام کې د تاکید توري استعمال شي . لکه :

الف : زه ارو مرو تا سره مرسته کوم .

ب : زه هیڅکله ستا خلاف نه کوم .

دې ډول خبر ته ( طلبي ) ویل کېږي او دا ځکه چې مخاطب د شک د لرې کېدو او د باور راتلو په طلب کې وي .

**۳ - منکر**: هغه چا ته ویل کېږي چې له یوه خبر نه منکر وي او د متکلم له نظر سره خلاف لري . په دې وخت کې په خبرو کې زیات تاکید ته اړتیا پېښېږي . لکه :

الف : ستا ورور خامخا او ارومرو راځي .

ب : والله چې ما ستا پوښتنه کړې ده .

دې ډول خبر ته ( انکاري ) ویل کېږي او دا ځکه چې مخاطب منکر وي، د هغه د قناعت لپاره زیات تاکېد ته اړتیاوي.

نو متکلم چې کله دا درې ډوله مخاطب وپېژني او د هغه له تشخیص نه وروسته ورسره د خبر له درې ډولونو نه یو استعمال کړي دا د حال او مقام د مقتضا مطابق خبره او بلیغه شوه . او دا کار د معاني د علم په مټ وشو .

## تاکید (ټینګار)

تاکید یا ټینګار په خبرو کې د دریځ د کلکوالي، څرګندونې، ښکلا ، مبالغې او ژبدود لپاره راوړل کېږي .

پښتو کې تاکید په درې ډوله راځي :

۱ - په تکرار (غبرګولو) تاکید کول .

۲- په غبرګيز تاکيد کول .
۳- د تاکيد په برخيزونو (کلمو) تاکيد کول .

**لومړی- تکرار(غبرګول)** : لکه مه مه يا کوه کوه .

**دويم – غبرګيز** : چې په دوه ډوله دی .

**۱- پرتليز غبرګـــيز** : چې د هر لفظ، کلمې او برخيز لومړی توری غورځېږي او په ځای يې (م) راوړل کېږي . لکه : کتاب متاب، قلم ملم، دېوال مېوال، سړی مړی، ډوډۍ موډۍ...... چې د هرې کلمې دوهمه، غبرګيز بولو او د ا يو داســې بحر دی چې ســاحل نه لري، خو په هغو لفظونو کې راوړل کېږي چې د ســر توری يې (ميم) نه وي، که د ســر توری يې ( ميم ) وي، نو ځينې تکرارېږي او ځينې سماعي او دوديز غبرګيزونه لري .

**۲- دوديز او سماعي غبرګـــيـــز** : دا هغه غبرګيز دی چې د قاعدې او قانون په بنســټ نه پرتله کېږي، بلکې پښــتو کې له پخوا نه همداســې اوريدل شــوي او راپاتې دي . لکه : کوږ ووږ، ســوړ پوړ، يخ پخ، شــخ پخ، مــال هــال، خراب تراب....داډول غبرګيزونـه اکثره پـه صــفتونوکې راځي . پښــتو د ټينګار ډېر برخيزونه لري چې وروسته به راشي .

## انـشـاء

انشـــاء هغـه کلام یـا خبروتـه ویـل کېږي چې د ریښـــتیـا او دروا‌غواحتمـال پکې نـه وي . بلکې پـه هغو کې چې کوم مطلـب نغښتی وي د متکلم له تلفظ نه مخکې نه معلومېږي اود ریښتیا یا دروا‌غو حکم پرې نه شي کېدی .

انشاء په دوه ډوله ده :

۱ - طلبي .

۲ - غیر طلبي .

دمعاني او بلاغت په علم کې غیر طلبي انشـــاء نه څېړل کېږي، ځکه چې غیر طلبي انشاء اصل کې له خبر نه انشاء ته نقل شوې ده او اجمالي ډولونه یې دادي :

۱ - د مدحې او ذم ( ښو او بدوستا یلو ) توري ( برخیزونه ).

۲ - عقود . ( داخیستلو او خرڅولو.... ) توري ( برخیزونه ).

۳ - دقسم توري ( برخیزونه ).

۴ - د تعجب صیغې ( ویونه ).

۵ - د رجاء توري ( برخیزونه ).

د معانیو په علم کې یواځې له طلبي انشـــاء څخه بحث کېږي .

طلبي انشاء هغه انشاء ده چې متکلم پرې د دا سې مطلب غوښـــتنه کوي چې د هغه په اند د غوښـــتنې په وخت کې نه وي حاصل شوی .

**طلبي انشاء په پنځه ډوله ده :**

**۱- امر** : ( **د یوه کار د کولو غوښتنه** ).

**۲- نهی** : ( **د یوه کار د نه کولو غوښتنه** ).

**۳- استفهام** : ( **پوښتنه** ).

**۴- تمني** : ( **ارزو او ارمان کول** ).

**۵- نداء** : ( **اواز یا غږ کول** ).

# لومړی : امر

**امر د یو کار د کولو غوښـــتنې ته ویل کېږي . او دا په (۱۹) ډوله دی :**

**۱ - استعلاء . کله چې اعلیٰ په ادنیٰ ( د اوچتې مرتبې والا پرلاندې ) الزامي امر وکړي چې مطلب یې د هغه کار په کولو مجبورول وي، نو دا امر اســتعلاء بلل کېږي ، لکه الله تعالی چې خپلو بنده ګانو ته امر کوي یا پیغمبر امتیانو ته امر کوي یا امیر مامور ته امر کوي یا بادار مزدور ته امر کوي .**

**۲ - دعاء (بلنه) . کله چې ادنی اعلی ته امر وکړي دعاء بلل کېږي لکه : ای ربه ! زمونږ ګوناوې راوبخښه مونږ ته روزي راکړه.....**

**۳ - التماس** (**هیله**). کله چې همزولي یا په مرتبه کې مســاوي ته امر وکړي دا امر التماس بلل کېږي .

**۴ - ارشاد** ( **لارښوونه** ). هغه امر ته ویل کېږي چې څه لارښوونه پکښې وي . لکه : هرکار په کلکه اراده او سړه سینه کوئ .

**۵ - تهدید** ( **رټنه** ). کله چې په یو امر کې ســختي او زجر وي تهدید بلل کېږي لکه : کوئ کوئ زه به درسره ګورم!.

**۶ - تعجیز** ( **بې وســه کېدل** ). هغه امر ته ویل کېږي چې د متکلم اراده د مخاطب پاتې راتلل اوبې وسه ګڼل وي . لکه چې الله تعالی فرمایي :

" وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ مِمّا نَزّلْنَاعَلَي عَبْدِنَا فَاْتُواْ بِســُوْرَةٍ مِّنْ مِثْلِه " سورة البقرة:۲۳.

" او که تاسو د هغه کتاب په هکله شک لرئ چې ماپه خپل بنده نازل کړی دی، نو د دې په څېر یو سورت خو راوړئ......" .

**۷ - اباحت** ( **مباح کېدل** ). لکه چې الله تعالی فرمایي :

" وَاِذَا حَلَلْتُمء فَاصْطَادُواْ "

( کله چې تاسو ( په حج کې احرام نه ) حلال شوئ،نو ښکار وکړئ ).

دلته د ( ښکاروکړئ) امر د فرضیت لپاره نه دی چې ګنې حاجي کله له احرامه حلال شي نو هرومرو به ښکارکوي ! بلکې مخکې داحرام په وخت کې پرې ښــکار حرام شــوی ؤ نواوس ور ته له احرا مه دحلالېدوپه وخت کې ښکارحلال شو اودا امر د اباحت لپاره شو.

یالکه اســتاذ شــاګردان دکوم لامل له کبله له خبرو منع کړي وي اوبیادلامل له منځه تللو نه وروســته ورته ووایي : خبرې کوئ . نودا امر داجازې اواباحت لپاره شو.

**۸ - تسویه** ( **برابرول** ). لکه : ته لاړ شه یامه ځه زه خو ځم .یعنې ستاتلل اونه تلل برابر دي، ځې اوکه نه، زه خو ځم .

**۹ - تمني** ( **ارزو او ار مان کول** ). لکـه : ای د ازادۍ ســبا! راوخېژه. یعنې کاشکې چې راوخېژې .

**۱۰ - اکرام** ( **عزت کول** ). لکه : مهرباني وکړه دلته کښېنه .

**۱۱ - دوام** . **لکه** : د مېلمه احترام کوه . یعنې دمېلمه احترام تل کوه .

**۱۲ - امتنان** ( **د احســان ځرګندونه** ). لکه : یو پلار زامنو ته وایي : کرئ! ریبئ! او خورئ! ډېره ځمکه مې درته ګټلې ده .

**۱۳ - اعتبار**. لکه : یو څوک چاته ورپېژني او اهمیت یې ورښی، نو ورته وایې : دا وپېژنه .

**۱۴ - اهانت**. ( **سپکاوی** ). لکه یو چاته وایې : زمری شه! پړانګ شه! زه دې پروانه لرم .

**۱۵ - اذِن** . ( **اجازه ورکول** ). لکه چې څوک دروازه ووهي او ورته ووایې : راځه! یا راننه وځه .

**۱۶ - تعجب** . لکه : وګوره څومره ښه ښکاري !.

**۱۷- تکوین** . ( **کېدل، جوړېدل او پیدا کېدل** ) . لکه چې الله تعالی فرمايي :

" کُنْ فَيَكُوْن ". سورة البقرة: ۱۱۷.

( وشه یا جوړ شه، نو کېږي ).

**۱۸- تادیب** . ( **ادب ورکول** ) . لکه : خپلې مخې کې خوراک وکړه! وړه مړۍ واخله! ځان پاک کړه!.

**۱۹- تخییر** . ( **اختیار ورکول** ) . لکه : یا سبق ووايه او یا کار وکړه!.

## دوهم: نهې

نهې د يو کار د نه کولو غوښتنې ته ویل کېږي او دا په څوارلس (۱۴) ډوله ده :

**۱- استعلاء** . کله چې اعلی ادنی له یوه کار نه الزامي منعه کوي چې مطلب يې د هغه کار په نه کولو مجبورول وي، دې ته د استعلاء نهې ویل کېږي . لکه الله تعالی چې خپل بنده ګان، پیغمبر امتیان، امیر مامور، بادار مزدور او پلار زوی منعه کوي.

**۲- دعاء** ( **بلنه** ). لکه : ای ربه! مونږ مه نیسه مونږ په عذاب مه هلاکوه!...

**۳- التماس** ( **هیله** ) . کله چې مساوي منع کړې دا دالتماس نهې ده.لکه چې یو همزولی اوملګری بل ته وایي : مه کوه.

**۴- ارشاد** ( **لارښوونه** ). کله چې منعې کې لارښوونه وي ارشاد بلل کېږي . لکه : د بداخلاقه خلکو ملګر تیا مه کوئ! ، چې اړتیا ورته نه لرئ هغه کار مه کوئ!.

**۵- تادیب** ( **ادب ورکول** ) . دا هغه منع ده چې ادب ورکول پکې وي . لکه : د بل چا مخکې خوراک مه کوه، چاته کنځل مه کوه!.

**۶- تَـیْـئِـیْـسْ** ( **نااميده اوناهیلی کول** ). لکه چې الله تعالی فرمایې :

" لا تَعْتَذِرُواْ قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيمَانِكُمْ " سورة التوبة : ٦٦ .

( عذر مه وړاندې کوئ تاسو له ایمانه وروسته کفر کړی دی ) .

یا لکه چاته وایې : بهانې مانې مه کوه اوس درنه وخت تېر دی .

**۷- دوام** . لکه : ( په الله د ناخبره ګومان مه کوه ! ) .

**۸- د پایلې** ( **نتیجې** ) **بیان** . لکه : درواغ مه وایه رسوا به شې !.

**۹- تمني** ( **ارزو او ارمان کول** ). لکه : د ځوانۍ عمره! مه تېرېږه!. یعنې کاشکې چې تېرنه شې .

**۱۰- تهدید** ( **سختي، زجر او رټنه** ) . لکه چې امیر مامور ته وایي : زما مه منه خوند به درکړي! .

**۱۱- تحقیر** ( **سپک ګڼل** ) . لکه : ځان مه سترې کوه ته داکار نه شې کولی!.

**۱۲ - کراهت** ( **نامنا سب ګڼل** ) . لکه : د سـرکونو په غاړو خوراک مه کوئ! د چامخې ته توکاڼې مه تو کوئ !.

**۱۳ - ائـتـنَـاس** ( **مینه تسلي او الفت ورکول** ) . لکه : **خفه نه شې،** زه دې مَلګَرى يم !.

**۱۴ - توبیخ** ( **رټنه** ) . لکه : چې نه یې شې کولی مه یې وایه!.

# دريم: استفهام ( پوښتنه )

اســتفهام پوښــتنې ته ويل کېږي او پوښــتنه د دې لپاره وي چې مجهول شى معلوم کړي .

پوښــتنه کله د غږ او خبرې له لهجې نه څرګند يږي او کله د تورو په واسطه کېږي . د پوښتنې برخيزونه دادي :

**۱** - ( **آيا** ). د اثبات او نفې د څرګندولو لپاره راځي لکه : ايا کله مو د پسرلي په هکله مقاله ليکلې ده؟!

**۲** - ( **کله** ). د وخت د څرګندولو لپاره راځي او تفصــيل به يې لږ وروسته راشي .

**۳** - (**کوم**) :

الف – په متعددو (ګڼو) کې د يوه د تعين ( ټاکنې ) د څرګندولو لپاره راځي . لکه : په ګلونو کې ستا کوم يو خوښ دى؟

ب – د إدعاء د ثرګندولو لپاره راځي. لکه یو څوک ووايي : ماسره قلم شته. او ورته ووايې : کوم دی؟.

ج - دڅرګندولو او دابهام دلرې کولو لپاره راځي. لکه : دیو شي په هکله له چاپوښتنه کوې چې : کوم دی ؟.

**۴** - (**څنګه**) : د کیفیت د څرګندولو لپاره راځي لکه: دافغانستا ن دستونزې حل څنګه کېدای شي؟.

**۵** - (**څرنګه**) : د(څنګه) په ځای راوړل کېږي چې د کیفیت پوښتل پرې کېږي.

**۶** -(**څه**) :

الف – د یو شــي حقیقت پرې پوښــتل کېږي . لکه : دا څه دي؟یا داڅه شی دی؟.

ب – د ( لا مل ) د څرګندولو لپاره راځي . لکه : د څه لپاره هلته تللی وې؟.

ج- د ( کوم ) په معنا راځي . لکه : ستا څه شی په کار دی؟.

د – د ( ولې ) په معنا راځي . لکه : ســتا څه کارؤ چې داســې دې وکړل؟.

هــ - د رټنې او منعه کولو لپاره راځي . لکه : ته یې څه کوې؟! پرې یې ږده .

و – د( پلټنې ) لپاره راځي لکه : څه شو؟.

**۷** - (**چېرته ، چرته ، چېرې ، چرې** ) .

الف – د ځای د څرګندولو لپاره راځي . لکه : ته چېرته اوسېږې؟

ب- د (استبعاد) (لرې ګڼلو) او تعجب لپاره راځي. لکه: چرته للمه او چرته شولې؟!.

۸ (څومره).

الف – د وزن، حجم، مسا حت، ا ندازې، ډېروالي او لږ والي د کميت د څرګندولو لپاره راځي. لکه له يوه بزګر نه پوښتنه وکړې چې: سږ کال دې څومره غله لاس ته راوړه؟.

۹- (څو). د عدد (شمېر) د کميت د څرګندولو لپاره راځي. لکه يو شاګرد ته ووايې: ستاسو په ټولګي کې څو تنه شاګردا ن دي؟.

۱۰- (ولې).

الف- د دليل او علت (لامل) د څرګندولو لپاره راځي. لکه: ولې دې دا کار وکړ؟ يا ولې داسې نه کوې؟.

ب- نفې په اثبات اړوي. لکه: ا يا دا کار نه کوې؟ ځواب: ولې نه؟!.

۱۱- (چا). د شخص د څرګندولو لپاره راځي چې زيات پرې فاعل پوښتل کېږي. لکه: دا کار چا کړی دی؟.

۱۲- (څوک). د شخص د څرګندولو لپاره راځي. لکه: دا کار به څوک وکړي؟ يا ته څوک يې؟ هغه څوک دی؟.

کله کله پوښتنه له اصلي معنا څخه (چې د مجهول معلومول دي) وځي او دنورو غرضونو لپاره کېږي. لکه:

۱- امر. لکه چې الله تعالی فرمايي:

" فَهَلْ اَنْتُمْ مُنْتَهُوْن "

(ایاتاسو منع کېږئ؟) (منعه شئ).

**۲- نهی** (**منع کول**). لکه: ایا له دښمن نه ډارېږئ؟. (مه ډارېږئ).

**۳- نفي** (**نشتوالی**). لکه: ایا له علم نه ښه شی بل شته؟ (نشته).

**۴- تسویه** (**د دواړو خواو برابري**). لکه: که زه لاړ شم او که نه؟ دا کار نه کېږي.

**۵- تشویق** (**هڅول اورغبت ورکول**). لکه: ایا زه تاته یو ښه کار وښایم؟.

**۶- انکار**. لکه: " اَفِي اللهِ شکٌ ".

(ایا په الله کې شک شته؟) بلکې په حقیقت کې نشته او تاسو یې چې کوئ نو بد کوئ.

**۷- تقریر** (**د یوکار ثابتول**). لکه: ایا ما تا سره نېکي نه ده کړې؟.

**۸- اسْتئْنَاس**. (مینه ورکول او ځان سره بلدول) لکه پلار ماشَوم تَه وایي: داڅه دي؟ هغه څه دي؟ یا لکه الله تعالی چې موسی علیه السلام ته وفرمایل:

" وَمَاتِلکَ بِیَمْنِکَ یٰا مُوْسی ".

(ای موسی! ستا په دې ښي لاس کې څه دي؟).

الله تعالی ته معلومه وه چې د موسی علیه السلام په ښي لاس کې امساده خود استـئـنـاس لپاره يې ترې وپوښتل.

**۹ - استبعاد** ( **لیرې ګـــڼل** ) . لکه : جنګي ډلې چې تقويه کېږي او وسلې ورکول کېږي څنګه کېدی شي چې له جنګ نه لاس واخلي؟!.

**۱۰ - تهويل** ( **لوی ګـڼل او وېرول** ) . لکه : ايا پوهېږې چې قيامت څه شی دی؟.

**۱۱ - تحقير** ( **سپک ګـــڼل** ) . لکه : هغه تا چې راته ډېر ياداوه هغه دادی؟.

**۱۲ - تعظيم** ( **لوی ګـــڼل** ) . لکه : رو سانو ته له افغانانو پرته چا ماتې ورکولی شوه ! ؟.

**۱۳ - تَــهَــکُّـمْ** ( **په ملنډو د چا کار عبث ګـڼل** ) . لکه : ستا پوهه همدا وه چې داسې کار دې وکړ!؟.

**۱۴ - تعجب** ( **اريانـتـيـا** ) . لکه : داڅومره لوی ښار دی او څومره ګڼ خلک دي!؟.

**۱۵ - استنباط** ( **د خبرو او پوهې طلب** ) . لکه :

" مَتَی نَصْرُ اللّٰه ".

د الله مرسته کله راځي!؟.

**۱۶ - وعيد** ( **وېرول** ) . لکه :

" اَلَمْ تَرَ کَيْفَ فَعَلَ رَبُّکَ بِعَاد ".

( ايا ته نه ګورې چې ستا رب عاديانو سره څه وکړل؟ ).

**۱۷ - په خطا تنبیه ( خطا او سهوې ته متوجه کول )** . لکه : ایا ښه کار پرېږدې او بد کوې!؟.

**۱۸ - په باطل تنبیه ( باطل ته متوجه کول )** . لکه : ایا ته کــڼو ته اورول کولی شې؟ یا ړندوته لار ښوولی شې؟.

**۱۹ - په ګـــمراهۍ تنبیه** . لکه : څوک په خطا لاره روان وي او ورته ووایې : چېرته ځې؟.

**۲۰ - تحســر (افســوس کول)** . لکه : ولې مې څوک له حاله نه پوښتي؟ زه خو لا دومره خوار نه وم .

**۲۱ - امتحان (ازموینه)** . لکه استاد چې شاګرد نه پوښتنه کوي.

# خلورم : تمني ( ارمان )
# او
# ترجي ( هیله )

تمني ( ارمان ) د داسې يوه محبوب شي غوښتنې ته ويل کېږي چې :

الف – حصول يې هيڅ ممکن نه وي بلکې مستحيل ( نه کېدونکی ) وي . لکه چې يو بوډا ووايي : کاشکې ځوان شم !.

ب – حصــول يې مســتحيل نه بلکې ممکن وي، خو ډېر ګران او سخت وي . لکه يو بې چاره ووايي : کاشکې پاچا شم!. ( تمني ) لپاره ( کاشکې ) يا ( ارمان ) کلمه استعمالېږي .

او که د يوه محبوب شي ارزو وکړې، خو د حصول اميد يې وي، نو دې ته (ترجي) (هيله) ويل کېږي او د(ترجي) لپاره (کېدی شي) الفاظ استعمالېږي . لکه : کېدی شي چې عالم شم. يا: مالدار شم . يا: بريالی شم. همدارنګه د ( اميد) يا ( هيله )کلمه هم د ( ترجي ) لپاره استعمالېدی شي.

لکه : اميد لرم چې الله تعالی به راته بخښنه وکړي. هيله لرم چې هغه به راشي.

## پنځم : نداء

نداء غږ او اواز کولو ته ويل کېږي چې مخاطب پرې د ځان خواته را متوجه کېږي .

د نداء برخیزونه په دري ډوله دي :

۱- یوائحې ( الف ) د نوم په اخر کې راوړل او اوږدول لکه : بریالیا!
چې ( الف ) یې په وازه خوله اوږد یږي.

۲- له نوم نه مخکې ( وا ) راوړل او وروسته ( الف ) راوړل او اوږدول
لکه : وابریالیا!.

۳- له نوم نه مخکې ( یا ) راوړل او وروسته ( الف ) لکه : یابریالیا!.

کله کله ځینې له ( الف ) نه وروسته ( واو ) هم راوړي لکه :

الف- بریالیاو!.

ب- وابریالیاو!.

ج- یابریالیاو!.

او کله کله ځینې د ( ای ) کلمه یوائحې هم استعمالوي او له
مخکنیو جملو سره یې هم لګوي . لکه :

الف- ( ای! ).

ب- ای انور خانا! ، ای انور خاناو!.

غږ اکثره د لرې لپاره کیږي او کله کله نږدې لپاره هم کیږي
خو:

۱- اواز پرې نه اوږد یږي.

۲- په اول کې د ( وا ) او ( یا ) کلمې نه راوړل کیږي.

۳- په اخر کې ( واو ) نه رائحي.

۴- یوائحې د ( ای ) کلمه ورته راوړل کیږي.

۵- کله ورسره ( ه ) هم په اخر کې زیاتیږي لکه: ای انوره!.

٦- کله یوائحې اخر کې (هــ) ورسره زیاتېږي او (ای) په سر کې نه راوړل کېږي. لکه: انوره!.

## د مؤنث توپير

مخکې چې مو کوم غږونه یاد کړل د مذکر لپاره وو د مؤنث (ښځینه) لپاره یې توپیر دادی چې:

الف – په اخر کې د (الف) په ځای (ې) راوړل کېږي او اوږدېږي لکه زینبې! چې (ې) ډېره اوږدېږي او راښکل کېږي.

ب – له نوم نه مخکې (یا) او وروسته (ې) راوړل کېږي. لکه: یازینبې!.

ج- له نوم نه مخکې (وا) او وروسته (ی) روارل کېږي. لکه: وازینبې!.

د- له نوم نه مخکې (ای) او وروسته (ې) راوړل کېږي. لکه: ای زینبې!.

هــ - د ځینو نومونو له اخري حرف نه مخکې (الف) زیاتېږي. لکه: واګلالای!. شیرینای!.

## مبتدا او خبر یا مسند الیه او مسند

مبتدا د خبرې هغه پیل دی چې په هکله یې پرېکړه کېږي.
او خبر هغه پای دی چې د همدې پرېکړې لامل وي.
بېلګې:
۱- احمد ولاړ دی.
۲- ستوري ډېر دي.
۳- وربېځ نشته.

پورتنیو درې جملو کې: (احمد)، (ستوري) او (وربېځ) هر یو مبتدا بلل کېږي چې د خبر ې پیل پرې شـوی دی، خو خبره پوره نه ده؛ که مونږ له (احمد) ســره (ولاړ دی) یو ځای کړو او ووایو: احمد ولاړ دی. نو خبره پوره شوه او مونږ له یو کار نه خبر شو چې هغه د احمد ولاړه ده. او که یوازې (ســـتوري) ووایوخبره پوره نه ده او د ســـتورو په هکلـه مو کو مه پرېکړه نه ده کړې، خو که (ډېر دي) ورسره یوځای کړو او ووایو: ستوري ډېر دي. نو خبره پوره شوه او مفهوم یې افـاده کړ چې د ســـتورو ډېروالی دی. همـدارنګـه کـه ووایو: (وربېځ) نو زمونږ ذهن ته د یوه نوم مسـمی راځي، خو د هغه په هکله پرېکړه نه څرګند ېږي، خو که (نشـــته) مو ورســـره یو ځای کړه او ومووېل: (وربېځ نشـــته) نو جمله پوره شـــوه او مونږ ته یو مفهوم څرګند شو چې د وربېځ نشتوالی دی.

د مبتدا او خبر نور نومونه هم شـــته لکه: (محکوم علیه او محکوم بِهِ)یا د معانیو د علم په اصـطلاح: (مسـند اِلیه او مسـند) یاد منطق په اصطلاح: (موضوع او محمول).

ځرنګه چې زمونږ زياتې خبرې په مبتدا او خبر مشـــتملې دي، نو له همدې امله يې د ځينو احوالو او احکامو يادونه کوو:

# ذکر او حذف

(ذکر) يـادونې او (حـذف) غور ځونې تـه ويـل کېږي. د يوه معنـا لرونکي لفظ يادونه کله ضـــروري وي او کله کله د يوې قرينې له امله له جملې نه غور ځېږي.

هغه ځايونه چې د مبتدا ذکر پکې لا زمي دی دادي:

۱- **ټينګار او ځرګندونه**: لکه: احمد ښه سړی دی، احمد وفادار دی.

۲- **په مخاطب رد**: لکه: يو ملحد ووايي: الله نشته او ته ورته په ځواب کې ووايې: الله شته.

۳- کله چې مخاطب په خبره پوه نه شـــي: نو په دې صـــورت کې هم بايد مبتدا او خبر دواړه بيا ذکر شـــي او پوره جمله تکرار شي.

۴- **تلذذ** (**خوند اخيستل**): لکه: الله يو دی، الله زما رب دی.

۵- کلـه چې اوريـدونکی غبي (ړونـد مغزی) وي او زرنـه پوهېږي.

۶- **تعجب**: لکه چې یو څوک ووایي: ا یا بر یالی دا کار کولی شي!؟.

۷- **دلیل او اثبات لپاره**: لکه چې قاضي له ګواه نه پوښتنه وکړي: ا یا احمد ستا په مخکې دا اقرار کړی دی چې د محمود پرې دا حق دی؟ هغه ووایي: هو احمد زما مخکې اقرار کړی دی.

۸- **تعظیم** (درنښت): لکه: ایا معلم صاحب په ځای دی؟ ځواب کې وویل شي: هو معلم صاحب په ځای دی.

۹- **اهانت** (سپکاوی): لکه قاضي پوښتنه وکړي: مجرم دادی؟ په ځواب کې ورته وویل شي: مجرم دادی.

## هغه ځایونه چې مبتدا پکې حذفیږي دا دي

۱- **ځواب**: لکه څوک ووایي: احمد څه شو؟ ځواب کې ورته وویل شي: شته. اصل کې جمله داسې وه چې: احمد شته. لکن د اختصار لپاره مبتدا (احمد) حذف شوه او یوازې شته وویل شو چې خبر دی.

۲- **پټول**: لکه ستا او د مخاطب په منځ کې یو څوک معلوم وي. خو یو بل څوک ناست وي او له هغه یې نوم پټوې، نو ورته ووایې: څه شو؟ هغه ووایي: کور کې دی.

۳- **بیړه**: د ډېر تلوار او بیړې په وخت کې غواړې چې فرصت له لاسه ورنه کړې، نو مبتدا حذف کړې. لکه یو ښکاري هوسۍ

پسې ګرځي او ته ناڅاپي هوسۍ و ګورې او ورته ووايې: هاغه ده.
په اصل کې داسې وه چې: هوسۍ هاغه ده.

**۴ - ازموينه**: لکه استاد غواړي چې د شاګرد ويښتيا او توجه معلو مه کړي، نو ووايي: لمر څخه رڼا اخلي. او مطلب يې داوي چې: سپوږمۍ له لمر څخه رڼا اخلي.

همدا رنګه نور داسې ځايونه هم شته چې مبتدا پکې حذفېږي او دا په سالم ذوق معلومېږي. د (خبر) د ذکر او حذف ځايونه هم په همدې ډول دي.

# د کلام جوړښت

جمله يا کلام په جوړښت کې (توکيو) ته اړتيا لري او هغه توکي چې کلام ترې جوړېږي درې دي:
۱ - نوم.

۲- فعل.
۳- حرف (توری).

په کلام کې چې څومره لفظونه استعمالیږي له دې درې ډولونو څخه به دباندې نه وي . ځینې لیکوالان د انګلیسي ګرامر یا کټ مټ پښتو ته ژباړي او د پښتو ګرامر ترې جوړوي او ځینې ور څخه اغېزمن شوي وي ، خو دا سمه نه ده. لکه ځینې د کلام توکي شپږ بولي:

نوم، ضمیر، صفت، فعل، قیدونه او ادات . دا سمه ده چې دا توکي دجملې اوکلام برخې دي، خو یوائې دانه، ځکه چې ضمیر، صفت او قید د اسم عارضي صفتونه دي، کله اسم مضمر (پټ) وي او کله ظاهر (ښکاره). کله عام وي او کله خاص، کله مقیدوي او کله مطلق، کله مبتدا وي او کله خبر، کله ظرف وي او کله مظروف، کله اسم اله وي، کله اسم زمان وي، کله اسم مکان وي، کله اسم تفضیل وي، کله فاعل وي، کله مفعول وي..... دا ټول د اسم عارضي صفتونه دی چې کله یو او کله بل ورته پیښیږي . نوقیدونه اوادات ځینې داسم اوځینې دفعل ډولونه دي.

کله مو چې وویل: کلام له: نوم، فعل او حرف څخه جوړیږي، نو د درې واړو ټولو ډولونو ته شامل شو او د دې اړتیا پاتې نه شوه چې یویو یې یاد کړو.

د اسم، فعل او توري یا حرف ډېر ډولونه او صفتونه دي چې دلته پرې بحث نه اوږدوو او هغه د (صرف) او (نحوې) له علم

سره اړیکې لري چې ان شاء الله یو ځانګړی کتاب به پرې ولیکو. دا او دا سې نور اړوند بنسټونه به پکې وڅېړو، دلته زمونږ مقصد د معانیو ځینو قواعدو ته لاره اوارول دي، نو ځکه بشپړه صرفي او نحوي څېړنه نه کوو، یوازې په ځینو اشارو بسنه کوو او د هغه څه یادونه کوو چې زمونږ بحث پورې اړه لري.

# نوم

نوم هغه لفظ دی چې ځانګړې معنا لري او له زمانې سره هیڅ تړاو او اړیکې نه لري.

لکه: دېوال، کتاب، احمد، قلم، غر، هغه، زه، ښه، ډېر، خوښي، خفګان، خوړل، تلل (چې دا دواړه مصدرنوم دی) او داسې نور.

# فعل (کړ)

فعل هغه لفظ دی چې ځانګړې معنا لري او د زمانې ښکارندوی وي. یعنې تېره شوې، حال او راتلونکې زمانه ښايي. پښتو کې ورته (کړ) او (کړنه) هم ویل کېږي او دا په پنځه ډوله دی:

۱ - **تېره زمانه**: لکه: لیکلی، خوړلی او داسې نور.

۲ - **حال**: لکه: راغی، لاړ، ولیکل او داسې نور.

۳ - **راتلونکې زمانه**: لکه: لیکي، ځي، ځم، ځو، وړو او داســې نور.

۴ - **امر**: لکه: وکړه، ولیکه، وکړئ، راځئ او داسې نور.

۵ - **نهی**: لکه: مه کوه، مه کوئ، مه ځئ او داسې نور.

# دماضي ډولونه

ماضي په شپږ ډوله ده:

(۱) مطلق ماضي.

(۲) نږدې ماضي.

(۳) لرې ماضي.

(۴) استمراري (روانه) ماضي.

(۵) احتمالي (دهیلې) ماضي.

(٦) تمنایي (دارمان) ماضي.

دماضي نښه داده چې په (دی)، (به وي) او (ؤ) حکمي تورو پرې حکم کېږي. لکه: لیکلی یې دی، لیکلی یي ؤ، لیکلی به یې وي.

• **مطلق ماضي** : هغه ده چې هیڅ کومه کلمه ورپورې نه وی تړلې. لکه: لوستلی، لیکلی، خوړلی، او داسې نور چې هیڅ بله کلمه ورسره نه وي راغلې.

• **نږدې ماضي** : هغه ده چې حال (اوس) سره نږدې وی.لکه: راغی، لاړ، ویې لیکه، او داسې نور. دنږدې ماضي او حال صیغې یو ډول دي اونښه یې داده چې د (اوس) کلمه راوړل پکې صحیح کېږي. لکه: اوس راغی.

• **دلرې ماضي** : نښه داده چې په (ۀ) باندې پرې حکم شوی وي. لکه: راغلی ۀ، تللی ۀ، لیکلی ۀ او داسې نور.

• **دا ستمراري ما ضي** : نښه داده چې په (به) پرې حکم شوی وي. لکه: راته به، ویده کېده به.

• **داحتمالي (هیلې) ماضي** : نښه داده چې (کېــــــدی شي) یا (هیله لرم) ترې مخکې راځــــي یـــا (به وي) ترې وروسته راځي. لکه: کېدی شي چې راغلی وي، هیله لرم چې راغلی وي، راغلی به وي.

• **دتمنایي (ارمان) ماضــــي** : نښـــه داده چې (کاشــکې) یا (ارما ن) ترېنه مخکې راځي لکه: کاشــکې راغلی وي. ارما ن چې راغلی وي.

## دمضارع ډولونه

مضارع هم په شپږ ډوله ده:

(۱) ـ مطلق مضارع.

(۲) ـ نږدې مضارع.

(۳) ـ لرې مضارع.

(۴) ـ استمراري (روانه) مضارع.

(۵) ـ احتمالي (دهیلې) مضارع.

(٦) ـ تمنائي (دارمان) مضارع.

• **مطلق مضارع**: هغه ده چې هیڅ کلمه ورسره نه وي نښتې. لکه: راځي، کوي، لولي او داسې نور.
• **نږدې مضــارع**: هغه ده چې حال (اوس) ورســره صــحیح کېږي. لکه: اوس راځي، اوس یي کوي، اوس یې لولي.
• **لرې مضــارع**: هغه ده چې (وبه) او (بیا) ورســره راځي. لکه: وبه یې کړي، بیا یي کوي.
• **اســتمراري (روانه) مضــارع**: هغه ده چې (تل) او (به) ورســره راځي. لکه: تل به یې کوي، کوي به یې.
• **احتمالي (دهیلې) مضــارع**: هغه ده چې (کېدی شــي) ورســره راځي. لکه: کېدی شي چې ویې کړي.
• **تمنایي (دارمان) مضــارع**: هغه ده چې(کاشــکې) یا (ارمان) ورسره راځي. لکه: کاشکې چې ویې کړي، ارمان چې ویې کړي.

# دحال ډولونه

د حال نښــه داده چې (اوس) ورسـره صـحیح کېږي او دا په دوه ډوله دی:
• **ماضي حال**. لکه: لاړ، راغی چې اوس لاړ اوس راغی ویلی شو او نږدې ماضي سره شریک دی.

• **مضــارع حال** . لکه: ځي، ليکي، چې اوس ځي، اوس يي ليکي ويلى شو او نړ دې مضارع سره شريک دى.

## ضمير (نومځرى)

ضــمير هغه لفظ دى چې د نوم ځاى نيســي او د اوږدوالي او تکرار مخنيوى کوي. لکه: هغه، هغوى، ته، تاسـو، زه، مونږ، مې، يې، مو، دې.

## برخيز (ويکى يا نيم کړ يا ادات)

د پښتو توري په دوه ډوله دي:
۱- د هجا توري يا الف، ب، پ ، ت. تر (ى) پورې.
۲- برخيزونه، او دا هغه لفظونه او توري دي چې نوم او فعل نه دي، ځانګړې او مستقله معنا هم نه لري، خو کله چې له نورو کلمو سره پـه ترکيـب کې واقع شــي، نو د خبرو يوه معنـا لرونکې برخـه تشکيلوي . لکه: خو، څخه، که، بې، له، او داسې نور.
عربي کې د هجـا تورو تـه هم حروف ويـل کېږي او ځينو برخيزونو ته هم.

لکه: من، الیٰ، عن او دا سې نور . او ځینو برخیزونو ته (ادات) ویل کېږي . لکه: د تشبیه ادات، د تاکید ادات او داسې نور.

د دې لپاره چې د هجا او نورو تورو تر منځ توپیر وشي، نو هغه توری چې د کلام په ترکیب کې معنا ولري (برخیز) یې بولو. او دا ځکه چې: (برخیز) د کلام یوه معنا لرونکې برخه ده، (ویګی) او (نیمګړ) یې هم بولو.

پښتو ګڼ برخیزونه لري چې ځینې لاحق او ځینې سابق دي ځینې ټاکونکي او ځینې تړونکي او کومکي دي. چې د هر یوه د معنا او په جمله کې د اســتعمال په ترڅ کې څرګندېږي . دلته د هر یوه د خپلې معنا او یا معناؤ ســره یادونه کوو او هغه څېړنې څخه تېرېږو چې د صــرف او نحوې پورې اړه لري. دلته یوائې د معاني اړوند څېړنه کوو اودټراو له کبله ورســره ځینې روغې کلمې هم څېړو .

## د تاکید (ټینګار) برخیزونه

پښتو کې د تاکید برخیزونه په لاندې ډول دي:

۱ - (**خامخا**) . لکه: زه خامخا کورته ځم.

۲ - (**اورمرو یا هرومرو**) . لکه: اورمرو داکار وکړه.

۳- (**ضــرور**) . لکه: ضــرور ولاړشــه (عربي ده خو پښــتو کې استعمالیږي).

۴- (**بېخي**) . لکه: په کور کې خوراکي شیان بېخي نشته.

۵- (**یواځې**) . لکه: یواځې زه داکار کولی شم.

۶- (**همدا**) . لکه: همدا زه یم چې دې کار ته مې تن ورکړی دی.

۷- (**هیڅ**) . لکه: زه هیڅکله درواغ نه وایم.

۸- (**قسم اخیستل**) (**لوړه کول**) . لکه: والله چې داکار وکړم یا ونه کړم.

۹- (**بې شکه**) . لکه: الله جل جلاله بې شکه یو دی.

۱۰- (**پام**) . لکه: پام کوه چې داکار ونه کړې.

۱۱- (**زخت**) . لکـه: زخت ډېر بـاران وشــو، زختې ډېرې او به راغلې.

۱۲- (**کنه**) . لکه: زه داسې کوم کنه.

۱۳- (**خورا**) . لکه: خورا ډېرې اوبه مې وڅښلې.

۱۴- (**چور**) . لکه: غنم چور ختم شول.

۱۵-(**هر**) . لکه: ښه خوی هر څوک خوښوي.

۱۶- (**سوچ**) . لکه: زمری سوچ لېونی دی.

۱۷- (**پخپله**) . لکه: زه پخپله دا کار کوم.

**۱۸** - (**هو به هو**) . لکه: زلمی هو به هو بریالي غوندې دی (داد عربي ضمیرونه نه دي).

**۱۹** - (**کټ مټ**) . لکه: دا کټ مټ هغه غوندې دی.

**۲۰** - (**په ځان**) . لکه: دا په ځان هماغه دی.

**۲۱** - (**تک**) . لکه: تک سور، تک شین، (د (ت) په زورکي).

**۲۲** - (**هډو**) . لکه: هډو نه راځم. (د ښکېنیو پښتنو محاوره ده).

**۲۳** - (**د سره یاله سره**) . لکه: د سره یې چې ونه کړې.

**۲۴** - (**کورټ**) (**بېخي**) . لکه: د رېدي خان مومند دې شعر کې:

وې ای ســـپـیـن ږیـریـه نـور څـه غـم مـه کـوه
قـوم دې خـلاص شـــو کـورټ مـاتـم مـه کـوه[1]

# د پښتو ځینې نور برخیزونه او معناوې یې

پښتو کې ډېر داسې برخیزونه شته چې یواځې معنا نه ځرګندوي او د خبرو پـه ترڅ کې د ګڼو او مختلفو معـانیو لپـاره راځي چې پـه لاندې ډول دي اودتړاوله کبله ورسره ځینې روغ هم راوړو :

**۱** - (**خو**):

---

۱- محمود نامه: ۴۱.

الف- د ا ستدراک لپاره د(لکن) په معنا راځي. لکه: ته راځې خو زه به نه یم.
ب- د تحضـيض(تېزولو) او هڅونې لپاره راځي. لکه: ته خو يو ځل داکار وکړه بيا وګوره.
ج- د اصــرار او ســخت درېځۍ لپاره راځي. لکه: ته دا کار کوې او که نه زه خو يې کوم.
د- د استثناء لپاره راځي. لکه: ټول راغلل خو احمد رانه غی.
هـ - د شرط لپاره راځي. لکه: درته وايم خو چاته به نه وايې.
**۲** - (**او**): د عطف (يو ځای کولو) لپاره راځي. لکه: زه او ته دواړه انسانان يو. کله کله زائد راځي. لکه: اودا ته څه کوې !؟.
**۳** - (**بيا**):
الف- د عطف او ترتيـب لپـاره راځي. لکـه: اول يو بيـا دوه بيـا درې........ دي.
ب- د تکرار لپاره راځي. لکه: که غواړې چې درس ياد کړې بيا بيا يې ولوله.
ج- د (وروســته) په معنا راځي لکه: زه بيا راځم يعنې زه وروســته راځم.
**۴** - (**په**):
الف- د (باندې) په معنا راځي. لکه: په کټ کښېنه. يعنې کټ باندې کښېنه.

ب- د ظرف برخیز دی د (دننه) په معنا راځي. لکه: په منګي کې اوبه دي.

ج- د دلیل او مطابق (سره سم) په معنا راځي. لکه: د هغه په خبره (دهغه د خبرې مطابق) (دهغه له خبرې سره سم).

د- دلامل لپاره راځي. لکه: د ګل جان په خبره دا کار مه پرېږده، یعنې د هغه د خبرې له امله دا کار مه پرېږده.

**۵** - (**کې، کښې**): د ظرف برخیز دی چې د زمان او مکان دواړو لپاره راځي. د زمان بېلګه لکه: پېښور او جلال اباد په اوړي (دوبي) کې ګرم وي. د مکان مثال لکه: په کتاب کښې لیک کول ښه کار نه دی.

**۶** - (**د**) (په زور کې):

الف- د اختصاص او ملک لپاره راځي. لکه: دا قلم د بریالي دی.

ب- د اضافت لپاره راځي. لکه: د احمد کتاب.

ج- د طرف (لور) د ځرګندولو لپاره د (له) په معنا راځي. لکه: د احمد نه مې قلم واخیست. یعنې له احمد نه.

د- د لامل د ځرګندولو لپاره د (له) په معنا راځي. لکه: د دې نه دا ځرګنده شوه یعنې له دې نه.

هـ- د غایې د پیل لپاره د (له) په معنا راځي. لکه: د دې نه وروسته به کوښښ کوم. یعنې له دې وروسته .

**۷** - (**ته**):

**الف**: د تبلیغ (رســولو) لپاره راځي. لکه: ماورته وویل . یعنې خبره مې ور ورسوله.

ب- د (لپاره) په معنا راځي. لکه: تاته مې کتاب واخیست. یعنې تا لپاره مې کتاب واخیســـت. او په ځینو لهجو کې د (ته) په ځای (له) هم ویل کېږي.

ج- د (باندې) په معنا راځي. لکه: محمود ته مې پور دی یعنې محمود باندې مې پور دی.

د – د ظرف لپاره راځي. لکه: ښــي خوا ته، چپ خوا ته، ونې ته، دېوال ته.

**۸** -(**پاره**) چې مخکې ورسره (د) یا (ل) راځي. لکه: د پاره یالپاره.

الف- د اختصـــاص او ملـــــک لپاره راځي. لکه: بریالي لپاره مې څپلۍ واخیستې.

ب- د تعلیل (لامل) لپاره راځي. لکه: د دې لپاره کوښــښ کوم چې بریالی شم. یعنې له دې امله کوښښ کوم چې بریالی شم.

**۹** - (**سره**):

الف- د مصاحبت (ملګرتیا) لپاره راځي. لکه: غمی له خپلو ملګرو سره د جهاد سنګر ته لاړ.

ب- د استدراک او تاسف لپاره راځي. لکه: سـره له دې چې ډېرې خبرې مې ورته وکړې، خو پوه نه شو!.

ج- د (یو تر بله) په معنا راځي. لکه: شــین ګل او بازمیر ســره ورونه دي، یعنې یو تر بله ورونه دي.

**۱۰** - (**له**):

**الف- د سبب (کبل) او علت (لامل) لپاره راځي. لکه: له دې کبله یا له دې امله.**

**ب- د مصاحبت (ملګرتیا) لپاره راځي. لکه: له هغه سره روان شوم.**

**ج- د مجاوزت (تېرېدلو) په معنا راځي. لکه: له سـیند څخه اخوا زمونږ کوردی.**

**د- د طرف (لور) او دلیل د څرګندولو لپاره راځي. لکه: له دې څخه دا څرګنده شوه.**

**هـ-دغایې دپیل لپاره راځي. لکه: له کوره تر پوهنځي.**

**۱۱** - (**چې**):

**الف- د وخت د ټاکنې لپاره راځي. لکه: ته چې راغلې زه نه وم.**

**ب- د بیان لپاره راځي. لکه: ماورته وویل چې: خلکو سـره ښـه سلوک کوه.**

**ج- د شرط لپاره راځي. لکه: څوک چې کوښښ کوي بری مومي.**

**د- د نتیجې (پایلې) لپاره راځي. لکه: زده کړه کوم چې عالم شم.**

**۱۲** - (**که**):

**الف- د شرط برخیز دی. لکه: که تارا سره ښه وکړل زه به هم درسره ښه وکړم. یعنې زه به په دې شرط درسره ښه وکړم چې ته را سره ښه وکړې.**

**ب- د برابرۍ او تنوع لپاره راځي. لکه: ګل که سـور وي که سـپین وي او که زېړ، ښکلی وي.**

ج- د اختیار لپاره راځي. لکه: ستا خوښه چې دا اخلې که دا او که دا.

د- د تردد لپاره راځي. لکه: ته ځې او که نه زه خو ځم.

**۱۳** - (**یا**):

الف- د تنوع لپاره راځي. لکه: یا ازادي، یا جهاد او یا شهادت.

ب- د مقابلې او بدل په معنا راځي. لکه: یا کوښښ وکړه او یا ناکامۍ ته غاړه کښېږده.

ج- د اختیار لپاره راځي. لکه: یا دا واخله یا دا او یا دا.

د- د تردد په معنا راځي. لکه: یا به راغلی وي او یا نه . او په یوې لهجې کې (لیا) ویل کېږي.

**۱۴** - (**تر**):

الف- د غایې د پای لپاره راځي. لکه: د علم او زده کړې وخت له ځانګونه تر مرګه دی. او کله کله مخکې ترې (ان) راځي. لکه: ان تر مرګه.

ب- د استمرار او دوام لپاره راځي. لکه: تر څو چې ژوندی یم موخې ته د رسېدو کوښښ به کوم.

ج- د (نه) په معنا راځي. لکه: منګی تر کټ لاندې دی.

د- د (کې) په معنا راځي. لکه: د جاهل او عالم تر منځ زیات توپیر دی او دلته د (په) معنا هم ورکوي.

هـ- د (پورې) په معنا راځي. او د شرط معنا هم څرګندوي. لکه: تر څو ښندنه نه وي ازادي نشته، یعنې څو پورې.

و- د (د) او (له) په معنا راځي. لکه: تر تا ځار شــم يعنې له تا ياد تانه.

**۱۵- (را):**

الف- د (ما) په معنا راځي. لکه: را ته يې وويل. يعنې ما ته يې وويل.

ب- د ځان خوا ته د جلب لپاره راځي. لکه: راکړه، راځه، راوړه.

**۱٦- (در):**

الف- د مخاطب (تا) په معنا راځي. لکه: ما درته وويل. يعنې ما تا ته وويل.

ب- د مخاطب خوا ته د جلب لپاره راځي. لکه: درواخله، دروړه.

**۱۷- (ور):**

الف- د غائب (هغه) يا غائبې(هغې) په معنا راځي. لکه: ماورته وويل. يعنې ما هغه يا هغې ته وويل.

ب- د بل خواته د جلب لپاره راځي. لکه: ورکړه، وروړه، ورشه.

**۱۸- (پورې):**

الف- د غايې د پای لپاره راځي. لکه: هغې پورې به جنګېږم تر څو ازادي وګټم.

ب- د (ته) او (باندې) په معنا راځي. لکه: احمد پورې مې پور دی يعنې احمد ته يا احمد باندې.

ج- د (ســره) په معنا راځي. لکه: ډوډۍ مې د شــېدو پورې وخوړه يعنې شېدو سره.

د- د (هغې غاړې) په معنا راځي. لکه: زمونږ کور ســیند نه پورې دی. یعنې هغې غاړې ته دی.

**۱۹ - (نه):**

الف- د غایې د پیل لپاره راځي. لکه: له کور نه روان شوم.

ب- د مقابلې او بدل په معنا راځي. لکه: جهل نه علم ښه دی.

ج- د (څخه) په معنا راځي. لکه: له هغه نه مې پوښتنه وکړه یعنې له هغه څخه.

د- د نفي او انکار برخیز دی چې د (هو) ضد معنا ورکوي. لکه چاته ووایې: دا کار کوې ؟ هغه ځواب کې ووایي: نه. یعنې نه یې کوم. او قندهارۍ لهجه کې د (نه) په ځای (یه) ویل کېږي.

**۲۰ - (څخه):**

الف- د خوا(لوري) په معنا راځي. لکه: زه له خپل ځان څخه پوره ډاډ درکوم. یعنې د ځان له لوري او د ځان له پلوه.

ب- د (نه) په معنا راځي. لکه: له دښــمن څخه مه وېرېږه. یعنې له دښمن نه.

ج- دځینو پښــتنو په لهجه کې د (ســره) په معنا راځي. لکه: زمونږ کور د جومات څخه دی. یعنې سره دی.

د- د (جملې) (ډلې) اوتبعیض په معنا راځي. لکه: ســیدجمال الدین افغاني د ختیځ له پوهانو څخه یو ســتر نابغه ؤ. یعنې د ختیځ د پوهانو په جمله کې.

هــــ- د غايې د پيل لپاره راځي. لکه: له روغتون څخه تر پوهنتون پورې دوه کيلو متره لار ده.

**۲۱** - ( **نه**): (دنون په زورکي) د نفې او انکار برخيز دی لکه: دا کارنه کوم، احمد نه راځي، باران ونه شو، ګرمي نشته.

**۲۲** - (**مه**): (دميم په زور) (**مه**) (د ميم په زورکي): د نهې برخيزونه دي چې د نه کولو امر لپاره راځي. لکه چې يو څوک له کوم کار نه منع کوې نو ورته وواېې: (مه). يا چاته وواېې، مه کوه، مه راځه.

**۲۳** - (**هو، او، وو، هوکې**): د ايجاب برخيزونـه دي چې د اثبات، اعتراف او اقرار په وخت کې ويل کېږي. لکه چا ته وواېې: درس ته تللی وې؟ يا: درس وايې؟يا: احمدراغلی دی؟ چې ځواب مثبت وي، نو هو، يا وو او ځينو لهجو کې هوکې ويل کېږي.

**۲۴** - (**ولې نه**): د ايجاب برخيز دی، خو د هغه اثبات لپاره راځي چې پوښــتنه په نفې شــوې وي. لکه: احمد خو نه دی راغلی؟ يا نه راځي؟ ځواب کې وواېې: ولې نه. يعنې راغلی دی يا راځي. چې د عربي د (بلی) معنا ورکوي.

**۲۵** - (**لکه، غوندې، په شـــان دود، ډول، څېر**): د تشـــبيه (ورته والي) برخيزونه دي چې تفصيل يې وروسته راځي. او (لکه) د مثال او بېلګې په معنا هم راځي. لکه په مخکې ټولو مثالونو او بېلګو کې چې مو وليدل.

**۲۶** - (**پرته**): د استثناء (جلاکولو) برخیز دی چې د (غیر) او (سوا) په معنا راځي. لکه: په کلنۍ ازموینه کې له محمود پرته نور ټول محصلین بریالي شول. یعنې له محمود نه غیر یاله محمود نه سوا.
ځینې خلک د (پرته)، (سـرېره) او (برسـېره) تر منځ توپیر نه کوي او ټول په یو ډېپ کې ولي، خو د دې درې واړو تر منځ توپیر شته چې:
**۱** - (**پرته**): د (غیر) او (سوا) په معنا راځي.چې مثال یې مخکې تېر شو.
**۲** - (**سـرېره**): د علاوه په معنا راځي. لکه: په دې سـرېره چې دپاکسـتان اوسـني واکداران افغانسـتان سـره ښـه ګونډیتوب نه کوي، بلکې دښـمني ورسـره کوي اوپلمې ورته جوړوي ،دروغ هم وایي اوتړونونه هم ماتوي .
**۳** - (**برسـېره**): د (پاسـه)، (باندې)، (ښـکاره)، او (څرګند) په معنا راځي. لکه: کتاب په مېز برسېره ایښی دی.
**۲۷** - (**نو**): اکثره دعربي د (ف) په معنا راځي. لکه: (فَأْتُواْ بِسُورَةٍ مِّنْ مِّثْلِه) (نودې غوندې یو سورت راوړئ). ، (فَاغْسِلُواْوُجُوْهَكُمْ ...) (نوخپل مخونه ومینځئ). زمونږځینې ملا صـاحبان اوژباړونکي دعربي ددې (فاء) معنا په (پس) کوي چې دایې د پارسـي معنا ده اودپښتوسمه معنا یې (نو) ده.
د (نو) ځینې معناوې دادي:

**الف**: د شرط د ځواب (جزا) لپاره راځي. لکه: که زیار مو و ایست نو ګټه به لاس ته راشي.
**ب**: د (بیا) په معنا راځي. لکه: نوتا ورته څه وویل ؟. یعنې بیا تا ورته څه وویل ؟.
**ج**: د تعقیب، کبل، ترتیب او بیان لپاره راځي. لکه : باران وشي نو ځمکه شنه شي. ، هغه خبره وکړه نو ویې ویل.

**۲۸** - (**کله**):

**الف**- دوخت په معنا راځي. لکه: کله چې باران (اورښت) وشي هوا پاکه شي. یعنې هغه وخت.
**ب**- د تقلیل (لږوالي) لپاره راځي. لکه: زه کله کله د احمد کور ته ځم او د روغ رنځور پوښتنه یې کوم.
**ج**- د استفهام (پوښتنې) برخیز دی. لکه چې مخکې تېر شو.
**د**- د مستحیل (نه کېدونکي) کار لپاره راځي. لکه یو بوډا ووایي: ځواني کله بیا راځي!؟.

**۲۹** - (**کاشکې**): د تمني (هیلې) برخیز دی د افسوس، حیرت او پښېمانتیالپاره راځي . که ماضي لپاره استعمال شي د پښېمانتیااوارمان معنا ورکوي. لکه: کاشکې مې دا کار کړی وای.
او که مستقبل (راتلونکي وخت) لپاره استعمال شي نو دهیلې معنا ورکوي. لکه: کاشکې مسلمانان متحد شي. (دریغه) او (ارمان) هم د کاشکې غوندې دي، خو دریغه یوازې د افسوس معنا ورکوي.

**۳۰- (ثنګه):**

الف- د پوښــتنې برخیز دی چې کیفیت پرې پوښــتل کېږي. لکه مخکې چې تېر شو.

ب- د (هغه وخت) یا (کله) په معنا راځي. لکه: ثنګه چې هوســی راښـکاره شـوه دز مې پرې وکړ. یعنې هغه وخت یا کله چې هوسی راښکاره شوه.

**۳۱-(ثرنګه):**

الف- د پوښــتنې برخیز اوثنګه غو ندې دی. لکه مخکې چې تېر شو.

ب- د لامل لپاره راځي. لکه: ثرنګه چې د هندو ستا ن او پا کستا ن تر منځ حالات ترینګلي دي، سوداګر هم داد من نه ښکاري.

**۳۲- (چرته، چېرته، چېرې، چرې):** (بېلې بېلې لهجې دي).

الف- د پوښـتنې توري دي اوځای پرې پوښـتل کېږي. لکه مخکې چې تېر شو.

ب- د (کله) په معنا راځي. لکه: که چرته راغلې زما پوښــتنه وکړه. یعنې که کله راغلې.

ج- د احتمال لپاره راځي. لکه: چرته باران ونه شي؟.

**۳۳- (وای، وی):**

الف- په وجود(شــته والي) باندې د حکم کولو لپاره راځي. لکه: که کوښښ مو کړی وای بریالي شوي به واست.

ب- په عدم (نشتوالي) باندې د حکم کولو لپاره راځي. لکه: که او به نه وای ژوند به نه ؤ. او په دې دواړو کې د هیلې معنا هم ورکوي.

**۳۴** - (**کنه**):

الف- د ټینګار لپاره راځي. لکه چې مخکې تېر شو.

ب- د تصــدیق د غوښــتنې لپاره راځي. لکه چې یوه خبره وکړې او بل چانه د دې غوښـــتنه کوې چې د ګواه په حیث ســـتا تصـــدیق وکړي، نو ورته وایې: (کنه) هغه ووایي: هو یا نه.

ج- د تعجب (اریانتیا) لپاره راځي، غږ پرې لږ اوږدېږي او د (ښـــه) معنا ورکوي چې د (نه) ضد دی.

**۳۵** - (**هکله**): د (باره) او (په حق کې) معنا ورکوي . لکه : اســتاد شاګردانو ته د ښو اخلاقو په هکله توصیه وکړه.

**۳۶** - (**بــه**): د راتلونکې زمــانې توری دی او مــاضـــي کې هم استعمالېږي چې:

الف- د استعجال (تلوار) لپاره راځي. لکه: زه به ولاړ شم.

ب- د دوام لپاره راځي. لکه: ییا به داسې نه کوم.

ج- د رټنې لپاره راځي. لکه: داسې به دې نه کول. یا: ییا به داسې نه کوې.

د- ماضي کې د احتمال لپاره راځي. لکه: کړی به یې وي.

هـــ- ماضي کې د توبیخ (رټنې) او تشویق لپاره راځي. لکه: کړی به دې ؤ کنه.

و: استمراري ( رواني ) ماضي لپاره د (تل) په معنا راځي. لکه: هغه به کتابتون ته راته. یعنې تل به راته.

**۳۷- (لا):**

الف- د (تراوسه) په معنا راځي. لکه:

لاخو مې روح له تنه تللی نه دی
غلیمه څنګه دې امید شو پیدا؟!

ب- د انتقال او ترقۍ لپاره راځي. لکه: شابا سی لاڅه چې انعام هم درکوم.

ج- د استبعاد او حسرت لپاره راځي. لکه: مونږ په انتظار ستړي شو ته به لا راځې!.

د- د (نور) په معنا راځي. لکه څوک وايي: څومره د پر کار دې کړی دی. په ځواب کې وايې لاخوبه يې کوم. یعنې نور يې هم کوم.

**۳۸ (بې):** د استثناء برخيز دی اود (پرته) او (غیر) په معنا راځي. لکه د خوشحال په دې بیت کې:

بې زحمته راحت نشته زما وروره
که راحت غواړې زحمت درلره بويه

**۳۹- (څومره):**

الف- د پوښتنې برخيز دی اوکمیت پرې پوښتل کېږي لکه چې داستفهام برخيزونوکې تېرشو .

ب- د شــرط لپاره راځي. لکه: څومره چې ښــه کوې هغومره به ښــه مومې.
ج- د تعجب لپاره راځي. لکه: اوه اوه څومره ډېر!.
د- د تحسین لپاره راځي. لکه: څومره ښه!.
**۴۰- (هغومره، هومره، اومره): (مختلفې لهجې دي).**
الف- د شــرط د جزا (ځواب) لپاره راځي. لکه چې لږ مخکې (۳۹ – ب) کې تېر شو.
ب- د (ترهغې یا هغې پورې) په معنا راځي. لکه: چې ما درته ځواب نه وي درلېږلی اومره مه راځه.
ج- د مقدار او کمیت (څومره والي) لپاره راځي. لکه: ماچې ګومان کاوه هغومره نه ؤ.
**۴۱- (دومره):** د مقدار او کمیت د څرګندولو لپاره راځي. لکه: دومره وړه، یا دومره کوه چې په وس دې پوره وي. یا چا ته د یوه شــي اندازه ښــایې او په لاســونو اشــاره وکړې یا یو ظرف یا اندازه ورته وښایې چې: دومره.
**۴۲- (هــر):**
الف- د ټول په معنا راځي. لکه: هر شـــی الله پیدا کړی دی. یعنې ټول شیان. چې دلته د تاکید معنا هم ورکوي.
ب- د (هغه) په معنا راځي. لکه: هر کله چې اذان وشـــي لمونځ به کوو. یعنې هغه وخت.

ج- د مبالغې لپاره راځي. لکه: هر څومره چې ځان ســتړی کړې نه کېږي.

**۴۳** - (**څو**):

الف- د پوښــتنې برخيز دی چې کميت پرې پوښــتل کېږي. لکه چې مخکې تېر شو.

ب- د (کوم وخت يا کومه) په معنا راځي. لکه: تر څو به دا کړاوونه ګالو؟!.

ج- د غايې د پای لپاره راځي. لکه: مخکنی بېلګه.

د- د شــرط لپاره راځي. لکه: تر څو چې زيار ونه باســو پرمختګ نه شو کولی.

**۴۴** - (**ځکه**): د علت (لامل) د څرګندولو لپاره راځي. لکه: کوښښ ځکه کوم چې بريالی شم.

**۴۵** - (**پر**): د (باندې) په معنا راځي. لکه: کتاب پر مېز ايښی دی. يعنې مېز باندې يا مېز د پاسه.

**۴۶** - (**ښــه**) يا د قندهار په محاوره (شــه) د منلو او اطاعت برخيز دی. لکه چې څوک ووايي: دا کار وکړه. په ځواب کې ورته ووايې: (ښه) يا (شه) يعنی ستا خبره مې ومنله او دا کار کوم.

**۴۷** - (**ز**): د (**ما**) او (**مونږ**) سره چې سر کې يو ځای شي د متکلم د ملکيت او اضافت معنا ورکوي لکه: زما کتاب، زمونږ کور.

**۴۸** - (**س**): د (**تا**) او (**تاســو**) ســره چې ســر کې يو ځای شـــي دمخاطب د ملکيت او اضافت معنا ورکوي لکه: ستا قلم، ستا سو کلی.

**۴۹** - (**ېږي**): د صــفت او ځينو مصــدرونو په اخر کې راځي، چې کله لام او کله ورســره مخکې توری لـه مصـــدر نـه غورځوي؛ دواړو(صــفت او مصــدر) نه د مضــارع (حال او راتلونکې) فعل جوړوي؛ کله مطلق وي او کله کلـه د اســتمرار معناورکوي چې دسياق اوسباق اوبرخيزونونه ځرګند ېږي. لکه: لوېږي، غټېږي، شرمېږي، کېږي.

**۵۰** - (**و**):

الف- د امر لپاره راځي. لکه: وکړه، ووايه، ومينځه، وليکه، وشړه، ودې وايي.

ب- د إخبار لپاره راځي. لکه: ويې کړ، ويې نه کړ، ودرېد، وغړېد، وخوړل شــو، ونه خوړل شــو، ووهل شــو، وشــو، وبه يې کړي، وبه شي، وبه نه شي.

**۵۱** - (**لره**):

الف- د (ته) په معنا راځي. لکه: هغه لره مې قلم ورکړ. يعنې هغه ته.

ب- د (لپاره) په معنا راځي. لکه: د خوشحال په دې بيت کې:

بې زحـــمــــته راحت نـــشــته زما وروره

کـه راحـت غـواړې زحـمـت درلــره بــويــه

درلره بویـه معنـا داچې: تـالپـاره ښـــایي.

**۵۲** - (**نا**): د نفي په معنا راځي. لکه: ناکاره، ناخوښ، ناروغ.

**۵۳** - (**هم**): د عطف برخیز دی. لکه: قلم هم واخله، کتاب هم واخله او کوښښ هم وکړه.

**۵۴** - (**پسې**):

الف- د وروســته په معنا راځي. لکه: لمانځه پســې کورته راشــه. یعنې لمانځه نه وروسته.

ب- د عطف اوترتیب برخیز دی او د بیا په معنا راځي. لکه: اودس پسې لمونځ دی، لمانځه پسې ډوډۍ ده، ډوډۍ پسې کار دی او د کار پسې خوب دی.

**۵۵** - (**ګڼې**) **یا** (**ګوندې**):

الف- د احتمال او امید لپاره د (کېدای شي) په معنا راځي. لکه: زه د شین ګل کورته ځم ګڼې راغلی وي.

ب- د (لکه چې) په معنا د مخاطب د ګومان د ردولو لپاره راځي. لکه: زه ګوندې نه پوهېږم؟

ج- د (که نه) په معنا راځي. لکه: زه اوزګار نه یم ګڼې مابه کړې وای.

**۵۶** - (**هې هې**): د افسوس او حسرت لپاره راځي. لکه: هې هې دا څه وشو؟!.

**۵۷** - (**اخ**)، (**وخ**):

الف- د مفاجات (نابیرتیا) سره د حسرت لپاره راځي. لکه: اخ داڅه وشو؟!.

ب- د درد او غم معنا هم ورکوي. لکه چې څوک درد مند شي او ووايي (اخ) یا (وخ).

**۵۸- (ویش):**

الف- د نابیره ظاهري (ښکاره) درد د څرګندولو لپاره راځي او یوائې ویل کېږي لکه: ویش یا ویش ویش.

ب- د چا په حال د معنوي درد پدلو د احساس د څرګندولو لپاره راځي او یوائې ویل کېږي.

**۵۹- (وی وی):** د درد اوحسرت په وخت کې ویل کېږي.

**۶۰- (اُف)** (د همزې په پېښ سره):

الف- د درد او سوي په وخت کې ویل کېږي.

ب- د افسوس او حسرت په وخت کې ویل کېږي.

**۶۱- (واوا، وه وه، واه واه، اها):** د تحسین او خوښی د څرګندولو لپاره راځي او یوائې ویل کېږي.

**۶۲- (یره):**

الف- د تنبیه لپاره راځي . لکه: یره چې دا احمد به چرته تللی وي؟.

ب- د پښېمانتیا او رجوع لپاره راځي. لکه:

چاسره هیڅکله ښېګړه نه کړم
یره کوم یې پرېږده څه به وشي

**۶۳** - (**اوه اوه**): تعجب او اريانتيا سره د يوه شي يا يوه کار ډېر ګڼلو لپاره راځي. لکه چې ډېرې اوبه يالوی نېز (سـېلاو) وګورې او ووايې: (اوه اوه) (واو اوږد ويل کېږي).

**۶۴** - (**اوهو**): د حسـرت او پښـېمانه کولو لپاره راځي. لکه: اوهو دا دې څه وکړل ؟.د (او) واو اوږد ېږي.

**۶۵** - (**ايله**):

الف- د لږ ګڼلو لپاره راځي. لکه: ايله همدومره دې وکړل؟!.

ب- د شـرط د جزا لپاره راځي. لکه: که داسـې دې وکړل ايله به مې زړه يخ شي.

**۶۶** - (**بلکې**): د استدراک لپاره راځي. لکه: زه کورته نه ځم بلکې ښار ته ځم.

**۶۷** - (**هله**): د شــرط د جزا لپاره راځي او د (هغه وخت) معنا ورکوي لکه: زه به هله دا کار کوم چې ته يې وکړې. يا: هله به خبر شې چې تارو جبې له ورشې.

**۶۸** - (**له**) (د لام په زور): د (ته) په معنا راځي. لکه نږدې مثال چې تېر شو.

**۶۹** - (**ځنې**): د څخه په معنا راځي. لکه:

لــه هــغــه ځــنــې ځــارېــږم
چې درد منـد پـه خپـل ملـت وي

او د (بعضې) په معنا چې راځي هغه (ځينې) دی.

**۷۰** - (**وال، واله**): دنسبت لپاره راځي. لکه:کوټوال، کوټ ته منسوب. کوټواله: مؤنث لپاره.

**۷۱** - (**نی، نۍ**): دنسبت لپاره راځي. لکه: بېګانی، پخوانی، لوارګینی، اوسنی، بېګانۍ، پخوانۍ، لوارګینۍ، اوسنۍ.

**۷۲** - (**ی، ۍ**): د نسبت لپاره راځي. لکه: افغانی، پېښوری، کابلی، افغانۍ، پېښورۍ، کابلۍ.

**۷۳** - (**ور، وره**): د (والا) په معناا و د مصاحبت لپاره راځي. لکه: سرور، څښه ور، ړیره ور، خېتهور، ژبه ور، د مؤنث لپاره (وره) راځي. لکه: خېتهوره، ژبه وره.

(ور) او (وره) دواړه د (واو) په زورکي دي.

**۷۴** - (**والا، وال** ): د نسبت او مصاحبت لپاره او د خاوند (څښتن) په معنا راځي. لکه: د پګړۍ والا، کابل والا، موټر والا، د قلم والا ، قلموال ، څارنوال .

**۷۵** - (**جوړ**): د احتمال لپاره راځي اود (لکه چې) معنا ورکوي لکه: جوړ خوښ دې شو . د (ګنې) په معنا راځي. لکه:زه جوړ نه پوهېږم ؟! یعنې زه ګنې نه پوهېږم؟.(د ښکېنیو پښتنو محاوره ده.)

**۷۶** - (**بویه**): د احتمال لپاره راځي او د (وګڼه) او (وکړه) په معنا دی. لکه د خوشحال خان دا شعر:

بې زحمته راحت نشته زما وروره
که راحت غواړې زحمت درلره بویه

**۷۷** - (**ګڼه**): د احتمال برخيز دی چې د شمېر، فرض کړه او بويه معنا ورکوي، لکه: ما حاضر وګڼه، داسې وګڼه چې زه نه يم راغلی.

**۷۸** - (**ښايي**): د احتمال برخيز دی چې د کېدای شي معنا ورکوي لکه: ښايي چې احمد راغلی وي.

**۷۹** - (**کېدای يا کېد ی**): د احتمال برخيز دی. لکه: کېدی شي چې باران وشي.او عامه معنا يې دکېدلو ده.

**۸۰** - (**راسې**): د غايې د پيل لپاره راځي. لکه: زمری د خالي ورځې راسې ښوونځي ته نه دی راغلی، او راهيسې هم ويل کېږي.

**۸۱** - (**ولې**):

الف- د پوښتنې برخيز دی چې مخکې تېر شو.

ب- د استثناء لپاره د (خو) په معنا راځي. لکه: هغوي راغلل، ولې زلمی رانه غی.

ج- د استدراک لپاره راځي. لکه: هغه راته وويل، ولې زه يې نه منم.

**۸۲** - (**زی**): دنسبت لپاره راځي. لکه: نورزی، علي زی، ستانکزی چې د (خېل) او (زوی) معنا ورکوي.

**۸۳** - (**خېل**): د نسبت لپاره راځي. لکه: سليمانخېل، نورخېل، حسن خېل ، سنګرخېل.

**۸۴** - (**ين**): د نسبت لاحقي برخيز دی. لکه: وزمين، سنګين، وريښمين، مالګين، لونګين.

**۸۵** - (**جن**): د نسبت او فاعلیت لاحقي برخیز دی. لکه: کبرجن، غمجن، دروغجن.

**۸۶** (**و نه، ګا ن، ګانې، ان، انې، یان، یانې، وې، ې**): دجمعې برخیزونه دي. لکه: قلمونه، الوګان، غواګانې، طالبان، دوستانې، غویان، پرېشانیانې، غلاوې، کوتې.

**۸۷** - (**دوی، دو یه، ګړی، ګړې، ونکی، ونکې، ګر، ګره، ګری، ګرې، ي، من، منډ، وان، یالی، ناک**): د نسبت او فاعلیت برخیزونه دي چې د (والا) او (کوونکي) په معنا راځي لکه: څارندوی، څارندویه، ژرنده ګړی، ژرنده ګړې، ساتونکی، ساتونکې، زرګر، زرګره، ملګری، ملګرې، ښکاري، کړومن، دولت مند، ګاډیوان، توریالی، خطرناک.

**۸۸** - (**غالی، تون، غلی**): د مکان برخیزونه دي چې د ځای په معنا راځي. لکه: پنډغالی، مېړتون، خرغلی.

**۸۹** - (**بخن، والی، ښت، توب، تیا، تون، ګلوي، ولي**): د صفت برخیزونه دي چې د یوه شي وصف پرې بیانېږي. لکه: توربخن، توروالی، نوښت، بوډا توب، زړور تیا، بېلتون، وروګلوي، وروروليِ. او تون دځای معنا هم ورکوي . لکه مخکې چې تېر شو یا درملتون، پوهنتون.

**۹۰** -(**م، مه**): د عدد د ټاکنې لپاره راځي. لکه: لسم کال، لسمه پېړۍ.

# د تصغير (وړکښود) برخيزونه

تصـغير د يوه شـي وړوکي ښـکاره کولو او ښـودلو ته ويل کېږي چې مونږ يې په پښــتو کې په (وړکښــود) نوموو. پښــتو کې د وړکښود برخيزونه په لاندې ډول دي:

۱- (**ګی**): د نارينه وړکښود لپاره راځي. لکه: کورګی، دېوالګی، زړګی، چې. د کور، دېوال او زړه وړکښودونه دي.

۲- (**ګۍ**): د ښــځينـه وړکښــود لپـاره راځي. لکـه: رعنـاګۍ، شاروګۍ، کوټه ګۍ، چې د رعنا، شارو او کوټې وړکښودونه دي.

۳- (**کی**): دنارينه وړکښود لپاره راځي. لکه: خوارکی، ډبوسکی، پنډوکی، ټيټکی. چې د خوار، ډبلي، پنډ او ټيټ وړکښودونه دي.

۴- (**کۍ**): د ښــځينــه وړکښــود لپـاره راځي. لکـه: خوارکۍ، ډبوســکۍ، پنډوکۍ، ټيټکۍ، چې د خوارې، ډبلۍ، پنډې، او ټيټې، وړکښودونه دي.

۵- (**ګوټی**): د نارينه وړکښود لپاره راځي. لکه: کميس ګوټی، ډاکټر ګوټی، خرګوټی. چې د کميس، ډاکټر، او خر وړکښــودونه دي.

۶ - (**ګـــوټې**): د ښـځينه وړکښـود لپاره راځي. لکه: غواګوټې، ستن ګوټې، ښځګوټې. چې د غوا، ستنې، او ښځې وړ کښودونه دي..

۷ - (**ټــی**): د نارينه وړکښود لپاره راځي. لکه: منګوټی، زلموټی چې د منګي او زلمي وړ کښـــودونـه دي، او کلـه کلـه د تحقير (سـپکاوي) لپاره هم راځي. لکه: سـموټی، شـفوټی، رفوټی. چې د سميع الله، شفيق الله او رفيق الله وړکښودونه او تحقير دی.

۸ - (**ټې**): د ښــځينــه وړکښـــود لپـاره راځي. لکـه: واوروټې، سپينوټې، پېغلوټې. چې د واورې، سپينې او پېغلې وړ کښودونه دي، او کله کله همدا تحقير هم ګڼل کېږي.

۹ - (**ټۍ**): د ښــځينه وړکښـــود لپاره راځي. لکه: زانګوټۍ او پېغلوټۍ. چې د زانګو او پېغلې وړکښـودونه دي او د تحقير لپاره هم راځي.

۱۰ - (**ړی**): د نارينه وړکښود لپاره راځي. لکه: کدوړی چې د کدو وړکښود دی.

۱۱ - (**ګوړی**): د نـارينـه وړکښـــود لپـاره راځي. لکـه: چرګوړی، انارګوړی چې د چرګ او انار وړکښودونه دي.

۱۲ - (**ړۍ**): د ښــځينه وړکښـــود لپاره راځي. لکه: کوزړۍ چې د کوزې وړ کښود دی.

**۱۳ – (ګــټــی):** د نارينه وړکښود لپاره راځي. لکه: زوم ګټی. چې د زوم وړکښود دی.

**۱۴- (ګــټــۍ):** د ښځينه وړکښود لپاره راځي. لکه: لورګټۍ چې د لور وړکښود دی.

**۱۵ - (نۍ):** د ښـــځينه وړکښـــود لپاره راځي. لکه: کوټنۍ چې د کوټې وړکښود دی.

**يادونه:** د پښـــتو وړکښـــودونو کې: (ګی، ګۍ، ګوټی او ګوټې) پرتليز (قياســـي) وړکښـــودونه دي او نور ســـماعي دي چې د کوم ځانګړي بنسټ لاندې نه راځي.

## نيمګــړي فعلونه يا نيمخيزونه

ځينې نيمګړي فعلونه هم د برخيزونو په څېر يواځې معنا نه لري او په جملې کې معنا ورکوي، له دې امله برخيزونه دي او چې له زمانې ســـره اړيکې لري، نو لـه دې املـه فعلونـه دي. مونږ يې نيمګړي فعلونه يا نيـمخيزونه نوموو او د برخيزونو په ترڅ کې يې راوړو چې په لاندې ډول دي:

## لومړی: په حال او نږدې ماضي کښې د شته والي او نشتوالي حکمي نیمخیزونه

۱- (شـو): د مفرد مذکر غائب لپاره راځي. لکه: باران وشـو یا ونه شو.

۲- (شـــوه): د مفردې مؤنثې غائبې لپاره راځي. لکه: کوټه رڼګه شوه یا رڼګه نه شوه.

۳- ( شو یا شول): د یوه نه زیاتو مذکرو غائبو لپاره راځي. لکه: شاګردان بریالي شول. او (شو) (په دروند واو) ویل کېږي.

۴- (شوې):

الف: له یوې نه زیاتو مؤنـــثو غائباتو لپاره راځي. لکه: شاګردانې بریالۍ شوې (شولې).

ب- د مفرد مخاطب مذکر لپاره راځي . لکه: ته بریالی شوې.

ج- د مفردې مخاطبې مؤنث لپاره راځي. لکه: ته بریالۍ شوې.

۵- (شواست، شوئ، شولئ):

الف- د جمعې مخاطبو لپاره راځي. لکه: تاسو بریالي شواست.

ب- د جمع مخاطباتو لپاره راځي. لکه: تاسو بریالۍ شوئ.

۶- (شـــوم): د مفرد متکلم مذکر او مؤنث لپاره راځي. لکه: زه بریالی شوم یا زه بریالۍ شوم.

۷ - (**شو، شولو**): (په درونــد واو): د جمعي متکلم مذکرو او مؤنـــثو لپاره راځي. لکه: مونږ بريالي شــو يا مونږ برياليـ شــو. (شولو).

۸ - (**شــوی**): (په شــين خج او زورکی): د غائب اومخاطب مفرد مذکر لپاره راځي. لکه: احمد بريالی شوی دی ته بريالی شوی يې.

۹ - ( **شوې**): (په شين خج او زورکی): د غائبې اومخاطبې مفردې مؤنث ؛ غائباتواومخاطباتو لپاره راځي. لکه: ســعيده برياليـ شوې ده.شاګردانې برياليـ شوې دي ته تاسو برياليـ شوې يې يئ.

۱۰ - ( **شوي**): (په شين خج او زورکی): د غائبواومخاطبو مذکرو لپاره راځي لکه: شاګردان بريالي شوي دي تاسوبريالي شوي يئ .

۱۱ - (**دی**): په اثبات او نفې د حکم کولو نيمخيز دی چې د مفرد مذکر غائب لپاره راځي. لکه: دا سړی دی يا داقلم نه دی.

۱۲ - (**دي**): په اثبات يانفې د حکم کولو نيمخيز دی چې:

الف- له يوه نه زياتو مذکرو لپاره راځي. لکه: هغوی ســړي دي، هلکان ولاړ دي، کورونه نړېدلي نه دي.

ب- له يوې نه زياتو مؤنثو لپاره راځي. لکه: هغوی ښــځې دي، جنکيـ ولاړې دي، کوټې رنګې شوې نه دي.

۱۳ - (**ده**): په نفې او اثبات د حکم کولو نيمخيز دی او د مفرد مؤنث لپاره راځي. لکه: دا کوزه ده، هغه ښځه ولاړه ده، دا ونه زړه ده، توريېکيـ راغلې نه ده.

**۱۴** - (**يې**): په نفې او اثبات حکمي نيمخيز دی چې:
الف- د مفرد مذکر مخاطب لپاره راځي. لکه: ته بريالی شوی يې، ته ناروغ نه يې.
ب- د مفرد مؤنث مخاطبې لپاره راځي. لکه: ته بريالۍ شوې يې، ته ناروغه نه يې.
**۱۵** - (**ياست، يئ**): په اثبات او نفې حکمي نيمخيز دی چې د جمعې مذکرو مخاطبو لپاره راځي. لکه: تاسو بريالي شوي ياست يا يئ. نه ياست يا نه يئ.
**۱۶** - (**ياستئ، يئ**): په اثبات او نفې حکمي نيمخيز دی چې د جمع مؤنث مخاطباتو لپاره راځي. لکه: تاسو بريالۍ شوې ياستئ يا يئ. نه ياستئ يا نه يئ.
**۱۷** - (**يم، يمه**): په اثبات او نفې حکمي نيمخيز دی چې د مفرد متکلم مذکر او مؤنث لپاره راځي. لکه: زه ناروغ يم يا زه ناروغ نه يم يا زه ناروغه يم يا زه ناروغه نه يم يا (يمه).
**۱۸** - (**ياستو، يو**): په اثبات او نفې حکمي نيمخيز دی چې د جمعې متکلم مذکر او مؤنث لپاره راځي. لکه: مونږ ډاکټران ياستو يا يو، . مونږ ډاکټران نه ياستو يا نه يو. مونږ ډاکټرانې ياستو يا يو، مونږ ډاکټرانې نه ياستو يا نه يو.

# دوهم: په لیرې ماضي کښې د اثبات او نفې حکمي نیمخیزونه

**۱** - (ؤ) (**شــوی**) (په شــین خج او زور کی): د اثبات او نفې حکمي نیمخیزونه دي چې د مفرد غائب مذکر لپاره راځي. لکه:
الف- ګل نواز راغلی ؤ یا ګل نواز راغلی نه ؤ.
ب- محمود ناروغ شوی ؤ یا محمود ناروغ شوی نه ؤ.

**۲** - (وو) (**شــوي**): له یوه نه زیاتو غائبو مذکرو لپاره راځي. او د اثبات او نفې حکمي نیمخیزونه دي. لکه:
الف- شاګردان راغلي وو یا شاګردان راغلي نه وو.
ب – د ټکر له امله څو تنه زخمیان شوي وو یا نه وو.

**۳**- (وه) (**شــوې**): د اثبات او نفې حکمي نیمخیزونه دي چې د مفرد مؤنث غائبې لپاره راځي. لکه:
الف-ګلالۍ راغلې وه یا ګلالۍ راغلې نه وه.
ب-ملالۍ ناروغه شوې وه یاناروغه شوې نه وه.

**۴**-(وې) (**شوې**): داثبات او نفې حکمي نیمخیزونه دي چې:
الف- د جمع مؤنث غائباتو لپاره راځي. لکه:
۱- جنکۍ راغلې وې یا راغلې نه وې.
۲- جنکۍ ناروغې شوې وې یا ناروغې شوې نه وې.

ب- (وې) د مفرد مذکر مخاطب لپاره هم راځي. چې مخکې ترې کله کله (شوی) هم راځي لکه:

١- ته راغلی وې یا راغلی نه وې.

٢- ته ناروغ شوی وې یا نه وې.

ج- (وې) (شوې) د مفرد مؤنث مخاطبې لپاره هم راځي. لکه:

١- ته راغلې وې، یا ته راغلې نه وې.

٢- ته ناروغه شوې وې یا ناروغه شوې نه وې.

٥- (واست، وئ، شوي): د اثبات او نفې حکمي نیمخیزونه دي چې:

الف- د جمعې مذکر مخاطبو لپاره راځي. لکه:

١- تاسو راغلي واست یانه واست.

٢- تاسو ناروغ شوي واست یانه واست.

ب- د جمعې مؤنث مخاطباتو لپاره راځي. لکه:

١- تاسو راغلې وئ یانه وئ.

٢- تاسو ناروغه شوې وئ یا نه وئ.

٦- (وم) (شوی): د اثبات او نفې حکمي نیمخیزونه دي چې:

الف- د مفرد متکلم مذکر او مؤنث لپاره راځي. لکه:

١- زه راغلی وم یانه وم. زه راغلې وم یانه وم.

٢- زه ناورغ شوی وم یانه وم، زه ناروغه شوې وم یا نه وم.

او کله کله د راتلونکي معنا هم ورکوي. لکه: که وم وم که نه وم نه وم.

**۷**- (**وو**) (**شــوي**): د اثبات او نفې حکمي نيمخيزونه دي چې د جمعې متکلم مذکر او مؤنث لپاره راځي. لکه:
**الف**: ۱- مونږ راغلي وو يا نه وو.
۲- مونږ ناروغ شوي وو يانه وو.
**ب**: ۱- مونږ راغلې وو يانه وو.
۲- مونږ ناروغه شوې وو يانه وو.

# دريم: د امر او نهې نيمخيزونه

**۱**- (**شه**) (**مه پږه**): د مفرد مخاطب مذکر او مؤنث لپاره راځي لکه:
**الف**- ويښ شه مه اودرېږه.
**ب**- ويښه شه، مه اودرېږه.
**۲**- (**شــئ**) (**مه پږئ**): د جمع مخاطب مذکر او مؤنث لپاره راځي لکه:
**الف**- ويښ شئ مه اودرېږئ.
**ب**- ويښې شئ، مه اودرېږئ.

# څلورم: د راتلونکي نيمخيزونه

د راتلونکي لپاره ورسره (به) يو ځای کېږي لکه:

۱- الف: افغانسـتان به اباد شـي، هغه به راشـي، يا افغانسـتان به وران نه شي هغه به رانه شي.

ب- هغوی (نارينه يا ښځينه) به راشي يا به رانه شي

۲- الف: ته به روغ شې يا به روغ نه شې.

ب: ته به روغه شې يا به روغه نه شې.

۳- الف: تاسو به روغ شئ يا به نه شئ.

ب: تاسو به روغې شئ يا به نه شئ.

۴- الف: زه به لاړ شم يا به لاړ نه شم.

ب: زه به لاړه شم يا به لاړه نه شم.

۵- الف: مونږ به لاړ شو يابه لاړ نه شو.

ب: مونږ به لاړې شو يا به لاړې نه شو.

يادونه:

(به) د عربي ژبې د (س او سـوف) معنیٰ هم ورکوي چې د (ژرده) په معنا راځي. کله تاکيد لپاره ورسره (ژرده) ويل کېږي او کله نه ويل کېږي.

# فعل او فاعل

(**فعل**) د یوه کار کولو ته ویل کېږي، چې یا په تېره زمانه کې شوی وي، یا حال او یا راتلونکي وخت کې کېږي.

او (**فاعل**) د یوه کار کوونکي ته ویل کېږي. لکه: احمد راغی، احمد فاعل دی او راغی فعل دی.

عربي ژبې کې فعـل مخکې راځي او پښـــتو کې فـاعـل مخکې راځي. عربي کې داسې ویل کېږي: جاء احمد ، که د دې کټ مټ ژباړه وشـي، نو داسـې به وویل شـي: راغی احمد ، او دا ژباړه حرفي (ټکي په ټکي) ژباړه بلل کېږي، چې د پښـــتو په قالب کې برابره نه راځي، خو که وغواړو، چې د پښـــتو په قالب کې برابره راشـــي، نو باید روانه ژباړه یې وکړو چې فاعل مخکې او فعل وروسته شي، نو داسې به شي چې: احمدراغی.

کله کله فاعل وروسته کېږي لکه:

۱- د تعجب په وخت کې لکه: (کار احمد وکړ او ســتړی محمود شو!؟).

۲- د تخصیص (ځانګړتیا) په وخت کې لکه: (دا کار ته وکړه!). (ته) فاعل دی او وروسته راغی.

۳- د متل او شعري ضرورت په وخت کې.

# مصدر

(**مصـــدر**) هغـه کړ نوم دی چې نورې صـــيغې ترې جوړېږي اوخپرېږي او په اخر کې يې ســـاکن (ل) راځي لکه: **ويل، کول، لوســـتل، ليکل، تلل، خوړل، ګره ول، ګنډل، څنډل** او داســـې نور.

د پښتو ځينو ليکوالانو دمصدر او فعل تر منځ توپير نه دی کړی او مصدر ته يې فعل ويلی دی حال دا چې دمصدر اوفعل تر منځ زيـات توپير دی چې مخکې ددواړو پـه تعريفونو او بيلګو کې څرګند شو او ځينې بېلګې يې په دې توګه دي:

(**ليکل**) مصـــدر دی، او وليکه، مه ليکه، ليکلی، ليکې او ليکم، فعلونه دي.

(**وړل**) مصدر دی. او: وړی، وړي، وړې، وړم او وړو فعلونه دي.

(**تلل**) مصـدر دی. او ځه، مه ځه، تللی، تللي، تللې، ځم، ځو، ځي، ولاړ، ولاړل اوولاړې فعلونه دي.

# مفعول

(**مفعول**) کړای شــوي ته ویل کېږي. (هغه څه چې څه کار پرې شوی وي) لکه: ما کتاب راوړی دی.

(مـا) فـاعـل دی (کتـاب) مفعول دی او (راوړی) فعـل دی. پښـــتو کې اکثر اول فاعل بیا مفعول او بیا فعل راځي. عربي کې مفعول اکثر وروسته راځي لکه: (اکل زید تفاحا).

(اکل) فعل (زید) فاعل او (تفاحا) مفعول بِهِ دی. که د دې کټ مټ حرفي ژباړه وکړو، نو داسې به ووایو: (وخوړه زید مڼه) چې داد پښـتو له ژبدود سره سمه نه ده که وغواړو چې روانه ژباړه یې وکړو، نو فاعل به مخکې کړو ورپسې مفعول او بیا به فعل راوړو، نو داسې به شي: (زید مڼه وخوړه).

دې لاندې ځایونو کې مفعول په فعل مخکې راځي:

۱- د تعجب په وخت کې لکه: کار ما وکړ او لافې ته وهې؟

۲- د امر په وخت کې لکه: (ډوډۍ وخوره).

۳- د ډاډ ورکولو پـه وخت کې لکـه: (کـار مې کړی دی) (مطمئن اوسه).

۴- د نهې په وخت کې لکه: (دروا غ مه وایه).

۵- د متل او شعري ضرورت په وخت کې. لکه: لړ خوره، تل خوره. ډېر خوره، زارا وکنډ پر خوره.

۶- کله چې فاعل ښــکاره نه وي لکه : ( ي، ئ، دې، ې،م ، مې او مو ) ضــميرونه وي، لکه: کارکوي، کارکوئ، ښــه کاردې وکړ، کارکوې، کارکوم، کار مې وکړ، کار مو وکړ. چې په دې ټولوکې (کار) مفعول دی اومخکې راغلی دی.

کله کله په متل اوشــعرکې فعل په مفعول مخکې راځي لکه په دې متل کې : ( مه کوه په چا چې وبه شي په تا ).
دلته ( مه کوه) فعل دی اومخکې راغلی دی ؛ (چا) مفعول دی او وروسته شوی دی .
یالکه په دې شعرکې :
وتــــره د پــــت او د حــــيــــا پـــګـــړۍ
ځــيـــرې کـــړه د غـِـش او د ريـــا پـــګـــړۍ [1]

دلته (وتړه) فعل دی اومخکې راغلی دی ؛ (پګړۍ) مفعول دی او وروسته شوی دی .که مونږ په عادي محاوره کې دا خبره کوو نو وبه وایو : دپت او دحیا پګړۍ وتړه . دغِش اودریا پګړۍ ځيرې کړه.

---

[1]ـ غِش: ټګي.

# صفت او موصوف

صفت هغه نوم دی، چې ستاینه، غندنه ، کیفیت یا کمیت (څرنګوالی یا څومره والی) څرګندوي. او موصوف هغه چا یا هغه شي ته ویل کېږي، چې ستایل شوی، غندل شوی ، څرنګوالی یا څومره والی یې څرګند شوی وي. لکه:

۱- عالم سړی، چې (عالم) صفت او (سړی) موصوف دی .

۲- ناوړه کار، چې (ناوړه) صفت او(کار ) موصوف دی .

۳- اوږد قلم، (اوږد) صفت او (قلم) موصوف دی .

۴- ډېر غنم، (ډېر) صفت او (غنم) موصوف دی.

عربي کې موصوف مخکې راځي او صفت وروسته. لکه: رجل عالم (رجل) موصوف او (عالم) یې صفت دی. یا لکه: قلم طویل، (قلم) موصوف او (طویل) یې صفت دی.

که مونږ یې کټ مټ ژباړه وکړو او ووایو چې: سړی عالم، یا قلم اوږد ، نو ښه نه برېښي او د پښتو له قانو نه خلاف ده. که وغواړو چې دپښتو له قانون اوژبدود سره سمه ژباړه وکړو نو باید صفت مخکې او موصوف وروسته کړو او داسې ووایو: عالم سړی، یا اوږد قلم.

کله کله موصوف مخکې او صفت وروسته راځي. لکه:

۱- د خبرولو وخت کې لکه: (اسمان شین دی).

۲- د تعجب په وخت کې لکه: (کمیس شین او پرتوګ سور!؟).

**۳- د امر په وخت کې لکه: (جامې پاکې کړه).**
**۴- د متل او شعري ضرورت په وخت کې.لکه :**
**پــتــمــن او مــېــړنــی او بــرمــلا زمــونــږ امــت دی**
**د مــیــنــې د الــفــت او د وفــا زمــونــږ امــت دی**

**دلته (پتمن) ، (مېړنی) او ( برملا) درېواړه د(امت) صـفتونه دي اوله موصوف ( امت ) نه مخکې راغلي دي .**
**۵- کله چې (که) ورځخه مخکې یا وروسته را شي لکه: ګل که سور وي او که زیړ زما خوښ دی. یا: که ګل سور وي اوکه شین.**

# ژبدود ته پاملرنه

**ځینې بنســتونه د ټولو ژبو ســره یو وي. هره ژبه ځانګړي دودونه او قوانین هم لري، چې له نورو ژبو ســره څرګند توپیر لري. د هرې ژبې قوانین او ځانګړتیاوې باید مراعات شي، له یوې ژبې نه بلې ژبې ته ژباړه په دوه ډوله ده:**

**۱- حرفي ژباړه (ټکي په ټکي او کټ مټ).**
**۲- روانه ژباړه.**

حرفي ژباړه کټ مټ او د هر لفظ وي او روانه ژباړه له ژبدود سره سمه وي. ژباړه که روانه او له ژبدود سره سمه ونه شي نو:

۱ - ډېره بې خونده وي.
۲ - مفهوم ترې ښه نه څرګند یږي.
۳ - ډېر ځل کېدای شي، چې غلط مفهوم ترې واخیستل شي.
۴ - ډېر ځل کېدای شي جمله بېخي مهمله او بې مفهومه شي.

روانې ژباړې کې په تکي په تکي ژباړه نه کېږي بلکې د یوې جملې مفهوم د بلې ژبې قالب کې برابرېږي او د هغې د قانون مطابق لوستل کېږي.

د بېلګې په توګه:

فارسي کې د (بزدل) کلمې ژباړه که حرفي وکړو، نو (بز) (اوزې) ته او (دل) (زړه) ته ویل کېږي، نو که د (بزدل) ژباړه په: (اوزه زړه) سره وکړو، نو هغه مفهوم یې څرګندنه کړ، چې فارسي کښې ترې مطلوب ؤ. او که روانه ژباړه یې وکړو، نو (بزدل) ته پښتو کې (بې زړه) ویل کېږي او په همدې روانې ژباړې سره هغه مطلوب مفهوم څرګند شو.

که له دې دواړو ژبو نه همدا کلمه عربي ته وژباړو که حرفي ژباړه وکړو، نو (بز) ته عربي کې (معز) ویل کېږي او (دل) ته (قلب) ویل کېږي، نو (قلب معز) یا (معز قلب) د بې زړه مفهوم بېخي نه څرګندوي بلکې غلطه ده؛ که د پښتو (بې زړه) په عربي کې حرفي

وژباړو، نو وبه وایو: (الذی لاقلب له) یا (معدوم القلب) بیا هم ژباړه ناسمه ده او مفهوم یې هم بدل شو، خو که دا دواړه (فارسي او پښتو) لفظونه په روانه عربي وژباړو، نو عربي کې (بزدل) یا (بې زړه) ته (جَبَان) ویل کېږي، ژباړه بېخي سمه او روانه راځي او مفهوم هم صحیح څرګندوي.

د حرفي او روانې ژباړې نورې بېلګې:

" وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِٱلۡأُنثَىٰ ظَلَّ وَجۡهُهُۥ مُسۡوَدّٗا وَهُوَ كَظِيمٞ يَتَوَٰرَىٰ مِنَ ٱلۡقَوۡمِ مِن سُوٓءِ مَا بُشِّرَ بِهِۦٓۚ أَيُمۡسِكُهُۥ عَلَىٰ هُونٍ أَمۡ يَدُسُّهُۥ فِي ٱلتُّرَابِۗ أَلَا سَآءَ مَا يَحۡكُمُونَ " [۱]

حرفي ژباړه:

(او هغه وخت، چې زېری ورکول شي یو د دوی ته په ښځې، وګرځي مخ د هغه تور او وي هغه غمجن، پټېږي له قوم نه د بدهغې نه چې زېری ورکول شوی په هغې سره، ایا ویې ساتي په سپکاوي او که ومنډي هغه په خاوره. خبردار د ېر بد دی هغه، چې دوی یې فیصله کوي).

روانه ژباړه:

۱ - د نحل سورت: ۵۸- ۵۹.

(او کله چې دوی کې چاته د لورد زېرېدو زېرې ورکول شــي مخ يې تـک تور شي او غمجن وي، د بد زېري له امله خلکو نه پټېږي، فکر کوي چې له پېغور ســره يې وســاتي او که په خاورو کې يې ښــخه کړي ؟ په دې هکله دوی ډېره بده پرېکړه کوي).

عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِـــيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كُنْتُ رَدِيْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى حِمَارٍ فَقَالَ لِيْ: "يَا مُعَاذُ! أَتَدْرِيْ مَا حَقُّ اللهِ عَلَى الْعِبَادِ، وَ مَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ؟" قُلْتُ: اَللهُ وَرَ سُوْلُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: "حَقُّ اللهِ عَلَى الْعِبَادِ: أَنْ يَّعْبُدُوْهُ وَلَا يُ شْرِكُوْا بِهِ شَيْئاً، وَ حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ: أَنْ لَّايُعَذِّبَ مَنْ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئاً".[۱]

**حرفي ژباړه:**

"روایت دی له معاذ زوی د جبل نه راضــي دې شــي الله د هغه نه، ویلي دي هغه: ومه زه وروسته له پېغمبر نه رحمت دې ولېږي الله پر هغه او ســلامتیا، په خر باندې، نو ویې ویل ماته: ای معاذه ! ایا پوهېږې ته، چې څه دی حق د الله په بنده ګانو د هغه باندې؟، او څه دی حق د بنده ګانو په الله باندې؟، ما وویل: الله او رسول د هغه ښه پوه دی. هغه وویل: حق د الله په بنده ګانو د هغه باندې دادی، چې عبادت وکړي د هغه او شـریک پیدا نه کړي هغه سـره هیڅ شـی، او

۱- بخاري، مسلم.

حق د بنده ګانو په الله دادی: چې عذاب ورنه کړي هغه چا ته، چې شریک یې نه وي پیدا کړی له هغه سره هیڅ شی ".

## روانه ژباړه:

" د جبل زوی معاذ رضـي الله عنه نه روا یت دی، هغه وایي چې: زه پیغمبر صلی الله علیه وسلم پسې په خرۀ سپور وم ، ما ته یې وفرمایل : " ای معاذه! ایا پوهېږې، چې الله په خپلو بندګانو څه حق لري؟ او بندګان په الله کوم حق لري؟ " ما ورته وویل: الله او د هغه پیغمبر ښــه پوهېږي. هغه وفرمایل: " د الله حق په خپلو بندګانو دادی، چې یوائې د هغه عبادت وکړي او هیڅ شــریک ورســره ونه ټاکي. او د بندګانو حق په الله دادی، چې چا ورسره شرک نه وي کړی، هغه ته عذاب ورنه کړي ".

حرفي ژباړه یوائې هغه وخت کېدی شــي، چې شــاګرد له اســتاذ نه ټکي په ټکي ځان پوهول غواړي . په وعظ او تبلیغ، د خلکو پوهولو، کتاب ژباړلو او مضــمون لیکلو کې یوائې روانه ژباړه کېږي.

ژباړونکی، چې هر کله ژباړه کوي هغه باید د دواړو ژبو په قوانینو او قواعدو پوه وي؛ بیا چې کله ژباړه کوي باید د یوې ژبې پوره مفهوم راواخلي او د بلې ژبې د قانون او بنســټ په قالب کې یې ورواچوي، تر څو اسانه روانه او خوږه ژباړه راووځي.

# مضاف اِلیه او مضاف

مضاف اِلیه هغه څه یا هغه شي ته ویل کېږي، چې د څه شي نسبت ورته شوی وي او مضاف هغه وي، چې د هغه نسبت شوی وي. لکه: د احمد کتاب، احمد مضاف الیه دی او کتاب مضاف دی.

عربي کې مضاف مخکې او مضاف الیه وروسته وي. لکه: (کتابُ احمد)، که مونږ کټ مټ ژباړه وکړو او ووایو: (کتاب د احمد)، نو دا جمله د پښتو په بنسټ سمه نه ده، که وغواړو، چې سمه او روانه شي، نو مضاف الیه باید مخکې او مضاف وروسته کړو او داسې ووایو: (د احمد کتاب).

کله کله مضاف الیه د متل او شعري ضرورت له امله وروسته کېږي او مضاف مخکې کېږي. لکه: ژرنده که دپلاده هم په وارده. دلته (ژرنده) مضاف دی او رامخکې شوی دی. (دپلار) مضاف الیه دی او وروسته شوی دی. په روانه محاوره کې دپلارژرنده ویل کېږي. یا لکه په دې شعرکې:

څلاوه دقرآن چې په شغلووه راروانه
هرچاته له مشرقه ترمغربه ښکارېده
په لاس دجبرائیل کې مشالونه آیاتونه
نازل په محمدشونړې ببرته رڼېده

توپیرله منځه لاړه دانسان عزت په ځای شو
سیـنـې کـې دبـلال دخـوښـۍ سا وچلـېـده
له سر اومال نه تېرؤېوهېده یې په حکمونـو
رګــونــودخـبـیــب کـې ولـولـه وه تودېــده

دلته (ځلا) مضاف او(دقران) مضاف الیه دی .
(لاس) مضاف او (دجبرائیل) مضاف الیه دی .
سینې (مضاف) او (دبلال) مضاف الیه دی.
(رګونو) مضاف او (دخبیب) مضاف الیه دی .
په دې ټولوکې مضاف په مضاف الیه مخکې شوی دی او داکار په شــعرکې وشــو ؛ که مونږ په عادي محاوره کې همدا جملې ووایو نومضاف الیه به مخکې کړو مضاف به وروسته او داسې به ووایو:
دقران ځلا .
دجبرائیل لاس .
دبلال سینې .
دخبیب رګونو .

همدا رنګه، چې مضــاف الیه (مې، مو، دې او یې) ضــمیر وي هم وروســـته کېږي لکه:(زړه مې خفه دی). زړه مضـــاف دی او (مې) ضمیر او مضاف الیه دی، او وروسته دی. یا: قلم دې واخله،

کتابونه مو راوړئ، څادر یې ورکړه. «دې»، «مو» او «یې» ضــمیرونه دي مضاف الیه واقع شوي دي او وروسته راغلي دي.

## مطلق او مقید

مطلق په لغت کې خوشــې شــوي او ازاد شــوي ته ویل کېږي. او په اصــطلاح کې: مطلق هغه لفظ یا خبرې ته ویل کېږي، چې بې له قید او شرط نه د خپل جنس په مشهور فرد یا افرادو دلالت کوي.
لکه: وطن ګران وي.

دلته وطن مطلق دی په هر چا خپل وطن ګران وي.

مقید په لغت کې تړل شــوي ته ویل کېږي، او په اصــطلاح کې: مقید هغه لفظ یا خبرې ته ویل کېږي، چې د یوه قید او شــرط سره د خپل جنس په مشهور فرد یا افرادو دلالت کوي.
لکه: نېک سړی د هر چا خوښېږي.

سړی مطلق دی، خو چې کله د نېک قید ور سره ولګېد، نو مقید شو. تــقیید د زیات وضاحت، څرګندونې او ځانګړتیا لپاره راوړل کېږي. لـه همـدې املـه: څومره چې پـه یوې خبرې کې قیود زیات وي هغومره خبره ښکاره، ډاګیزه او څرګنده وي.
د بېلګې په توګه:

که څوک په ورځپاڼه کې اعلان وکړي چې:

«درې کسانو ته ضرورت دی، چې موږ سره کار وکړي غوښتونکي دې موږ سره رابطه ونیسي».

په دې اعلان کې کسان مطلق دي که نارینه وي، که ښځینه، ځوانان وي او که بوډاګان، لوستي وي او که نالوستي....، خو که همدې اعلان سره نور قیدونه او شرطونه ولګوو او داسې ووایو:

«د برېښنا درې انجنیرانو ته اړتیاده، چې:

۱- نارینه وي.

۲- عمریې له (۴۰) کلونو څخه زیات نه وي.

۳- لږ تر لږه لسانس شهادتنامه ولري.

۴- لږ تر لږه (۷) کاله عملي تجربه ولري.

۵- د تجربې لیکلی ثبوت ولري.

غوښتونکي دې موږ سره اړیکې ونیسي».

نو دا مقید شو او په شپږو قیدونو خبره ښه روښانه او ښکاره شوه.

کله کله قید دومره ضرور وي، چې که خبرې نه قید لرې شي دروغ ترې جوړیږي:

لکه: الله تعالی فرمایي:

" وَمَاخَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالاَرْضَ وَمَابَیْنَهُمَالاعِبِین ". (الانبیاء: ۱٦)

" مونږ اسـمانونه، ځمکه او ددې دواړو تر منځ (ټول شـيا ن) عبث نه دي پيدا کړي ".

دلتـه د (لاعبين) (لوبې کوونکي) (عبـث) قيـد ښـخي فرض او ضروري دی، ځکه چې که دا قيد لرې شي، نو بيا به داسې شي چې:

" مونږ اسـمانونه، ځمکه او د دې دواړو تر منځ (ټول شـيا ن) نه دي پيدا کړي ".

نو بيا به خبره درواغ شـي ځکه چې دا ټول پيدا شـوي او الله تعالی پيدا کړي دي.

# وصل او فصل

# (پیوستون او بېلتون)

وصـل د عطف د برخیزونو (او)، یا (پسې) په واسطه د دوه یا ډېرو جملو یا کلمو تړلو ته ویل کېږي. او فصـــل د دوه یا څو جملو د عطف په برخیز (او) نه راوړلو جلاکولو او بیلولو ته ویل کېږي.

هره دویمه جمله او کلمه کله د عطف په برخیز له لومړۍ جملې ســره تړل شــوې وي او کله کله د دې برخیز په نه راوړلو بېله شوې وي.

دوه جملې یا کلمې د عطف په برخیز له دې امله تړل کېږي، چې د دواړو په منځ کې څه یووالی او مناســبت وي. او یاکله کله د توپیر لپاره د دواړو تر منځ د عطف برخیز راوړل کېږي. لکه:

۱- احمد او محمود دواړه د توریالي زامن دي.

۲- بریالیتوب او ناکامي له کوښښ پورې اړه لري.

۳- د وینا او عمل تر منځ ډېر توپیر دی.

او فصـــل کله د جملو او کلمو د زیات یووالي او معنوي امتزاج له امله وي، چې (کمال اتصال) (بشپړ پیوستون) بلل کېږي، کله د بېخي بېلتون او جلاکېدلو له امله وي، چې (کمال انقطاع)

(بشــپړ بېلتون) بلل کېږي . کله د ځواکمنو اړيکو او کله هم د کوم مانع له امله د عطف برخيز پرېښودل کېږي. لکه:

۱- احمد ، محمود ، سعيد او غمی په يو ټولګي کې درس وايي.

۲- راځئ چې خپلمنځي اختلافونه شــاتــه وغورځوو، ورورولي وکړو، دوستي وکړو، مينه وکړو، د ميندو او خويندو عفت خوندي کړو، زيار وباســو، کار وکړو، وطن اباد کړو، عدل او انصــاف پلي کړو، هر چاته خپل حق وسپارو، تر څو د سپېڅلي جهاد ښې پايلې لاس ته راوړو.

۳- د افغانستا ن مؤمن، مجاهد ، غېرتي، پتمن، او زړه ور ولس په مېړانه جهاد وکړ.

يالکه په دې شعرکې فصلونه :

چې زړه يې مړ وي، ذوق يې تت، احساس يې نه پاڅېږي
هغـه د شعـــر په ارزښـــت او قـــيـمت څه پـــوهـېږي

# ايجاز

ايجاز په لغت کې لنډولو ته ويل کېږي او په اصـطلاح کې په لږو الفاظو او لنډ تعبير د ډېرو او پوره معناګ ادا کولو ته ايجاز ويل کېږي.

ايجاز په دوه ډوله دی:

۱ ـ دقصر (لنډولو) ایجاز.
۲ ـ دحذف (غورځولو) ایجاز.

## ۱- د قصر (لنډولو) ایجاز

د قصــر ایجاز ته د بلاغت ایجاز هم ویل کېږي. او دا هغه لنډ الفاظ دي، چې کومه محذوفه او مقدوره کلمه یا جمله پکې نه وي، بلکې په لنډ تعبیر لویه معنا څرګنده شــي، خو په دې شــرط چې په فهم کې خلل واقع نه شي او پوره مطلب ترې واخیستل شي. لکه :

(شعر د زړه ترجماني ده)

دا لنډ تعبیردی او لوی مطلب او ډېرې معناوې پکښــې نغښــتې دي. ځکه چې زړه کې: مینه او محبت، بغض او حســد، دوستي او دښمني، کرکه او اغېزه، هیلې او احساس.... ټول ځای لري او شــاعر په خپل شــعر کې د دې ټولو ترجماني او انځورګري کوي.

یا لکه: دعبدالرحمن بابا دا شعر :

په ښــه خوی له بد خوا هانو بې پروایم
پــه نــرمــۍ لــکــه اوبــه د اور ســـزا یــم

د دې شـعر په لنډو الفاظو کې ډېر لوی مطلب پروت دی او هغه دا ، چې: که زما ډېر دښــمنا ن او بد خواها ن وي، خو زما د ښــه خوی او نېکو اخلاقو له امله هغوی دومره اغېزمن دي، چې ما ته د بدو رســولو اقدام نه کوي، نو له همدې امله ماســره هيڅ اند يښــنه نشـــته او بې پروا ژوند ته دوام ورکوم، او لکه څنګه چې اوبه ډېرې نرمې او پستې دي، خو سخت او سوځوونکی اور پرې له منځه ځي او مړ کېږي، نو همدا رنګه زه ډېر سـخت، سرکشـه او کلک خلک په ډېره نرمۍ او ښو اخلاقو تابع کوم.

## ۲- د حذف (غورځولو) ايجاز

د حذف ايجاز دې ته ويل کېږي، چې له يوې جملې نه څه توري يا کلمې وغورځېږي، خو په فهم او معنا کې څه خلل پيدا نه شي. لکه:

۱- (زه درځم) په دې جملې کې (هلته) حذف شــوی دی. که د غه غورځېدلی لفظ بېرته پکښې ننه با سو، نو دا سې به شي: (زه هلته درځم).

۲- (د احمـد خبرو رابـانـدې اغـېزه وکړه). دلتـه د (ښـــه) کلمـه غورځېدلې ده ځکه چې اغېزه ښـه هم وي او بده هم. اصـل کې جمله داسې ده: (د احمد خبرو راباندې ښه اغېزه وکړه).

۳- (پرون ډېر ښکلي ځای ته تللي وو، د غرونو ننداره مو وکړه، کاشکې ته هم راسره وای) په دې کې وروستۍ جمله حذف شوې ده چې: (خوښ شوی به وای).

۴- پوښتنه وکړې چې دا کار چا کړی دی ؟ څوک په ځواب کې ووایي: ما. چې په دې کې (کړی دی) حذف شوی دی؛ که محذوفه جمله ورسره یو ځای کړو، نو داسې به شي: (ما کړی دی).

# اطناب

اطناب په لغت کې اوږدولو ته ویل کېږي. او په اصطلاح کې هغه ګټور اوږدوالي ته ویل کېږي چې په یوه جمله یا عبارت کې د لنډو الفاظو په ځای داسې زیات او اوږده الفاظ راوړل شي چې څه ګټه ولري او بې ځایه نه وي. لکه: (بوډا) یوه لنډه کلمه او لنډ لفظ دی، که مونږ ووایو: (احمد بوډا دی)، نو دا ایجاز شو، خو که وغواړو، چې همدې جملې کې اطناب وکړو او ګټور اوږدوالی پکې وکړو نو داسې به ووایو:

(داحمد ملا کړوپه ده، خوله یې کشړوپه ده، مخ یې ګونجې ګونجې دی، ږیره یې سپینه ده، د سترګو دید یې کم دی او ډېر ضعیف دی).

د (بوډا) په لفظ کې دا ټولې معناوې پرتې دي، خو که په دې ډول یې اوږد کړو نو دې ډول اوږدوالي ته (اطناب) ویل کېږي.

## د اطناب ډولونه

اطناب ډېر ډولونه لري چې په لاندې توګه يې يادونه کوو:

۱- **له عام نه وروسته د خاص يادونه.** لکه: هره ورځ کار ته راځه، د يکشنبې په ورځ هم راځه.

۲- **له خاص نه وروسته د عام يادونه.** لکه: زه بريالى شوم، زمونږ د ټولګي ټول شاګردان بريالي شول.

۳- **له ابهام او اجمال نه وروسته وضاحت او تفصيل.** لکه: د افغانستان په جنګ کې ښکېلو اړخونو په اړوندو مسائلو خبرې وکړې. په مؤقت او دائمي اوربند، د بنديانو په تبادلې، د حکومت په تشکيل او د وسلو په راټولولو يې مفصلې خبرې وکړې.

چې په دې کې (په اړوندو مسائلو) کې څه ابهام او اجمال ؤ او وروسته يې وضاحت وشو.

۴- (**توشيع**): دا په کلام کې هغه تفسير ته ويل کېږي، چې د مخکې عبارت افراد ښکاره کړي. لکه: علم په دوه ډوله دی: د بدنونو علم او د دينونو علم.

# تکرار

د یوه شـي بیابیا یادولوته (تکرار) ویل کېږي. بې ځایه تکرارکول ناوړه، اوګټور تکرار سم دی.
تکرار د څو ګټو لپاره کېږي. لکه:
**۱** - (**استیعاب**) (د یوې مجموعې ټولو افرادوته شمول). لکه: کتاب مې پاڼه پاڼه وکوت او په لفظ لفظ یې پوه شوم.
**۲** - **په عبارت کې د اوږدوالي له امله یوه کلمه یا جمله بیا راوړل.**
لکه: ما ولیدل، چې هلته انسـاني ارزښـتونه تر پښـو لاندې شـوي وو، اخلاقي ارزښتونه چانه پېژندل، انسان د څاروي په څېر یوائې د نفسـي غوښـتنو د اشـباع لپاره کار کاوه. ما ولیدل، چې هلته د ټولنیز ژوند د سلامتیا لپاره هیڅ بندیز نه ؤ.
چې په دې عبارت کې د: (ما ولیدل) جمله دوه ځله دعبارت د اوږدوالي له امله تکرار راغلې ده.
**۳** - (**هڅونه**) لکه: مسـلمانانو یو شـئ، اختلافات، عداوت، کینه، او جګړې پرېږدئ. مسلمانانو د دښمن پلمو ته ځیر شئ.
**۴** - (**تردید**) چې د یوه لفظ د څو نورو لفظونو پورې هم اړه وي او له هر یوه سـره جلا جلا راشــي. لکه: کوښــښ او زیار ځان ته ګټه

رسوي، کورته ګټه رسوي، کورنۍ ته ګټه رسوي، کلي ته ګټه رسوي او ټولنې ته ګټه رسوي.

**۵** - (**تلذذ**) (**خونداخیستل**) لکه یو ادیب، چې د ادب له لفظ نه خوند اخلي او وایي: ادب تیارې روښانوي، ادب مینه پنځوي، ادب زړونو ته لار لري، ادب د زړونو ترجماني کوي، ادب د ټولنې خدمت کوي، ادب د وګړو احساسات، عواطف، مشاعر او ولولې راپاروي او ادب ټولنه د پرمختګ لورته هڅوي.

همدارنګه تکرار د نورو ډېرو مقاصدو لپاره هم راځي. لکه: لارښوونه، وېرول، ټینګار، د عاء، مبالغه او داسې نور.

او اطناب هم د نورو ګڼو ګټو لپاره راوړل کېږي، چې په ادبي ذوق پېژندل کېږي.

او که ګټور اوږدوالی نه وي، نو هغه ته بیا (تطویل) او (حشو) ویل کېږي، چې دا دواړه په کلام کې عیب ګڼل کېږي.

## تطويل

تطویل هغه فاسد او بې ګټې اوږدوالي ته ویل کېږي چې د زیاتي کلمو ټاکنه پکښې نه وي شوې او که کومه زیاتي کلمه ترې لرې شي، نو معنا کې کوم بدلون نه پېښېږي. لکه: زلمي شین ګل سره فرېب، چل، دوکه او ټګي کړې ده.

چې د (فریب، چل، دوکه او ټګي) کلمو یوه معنا ده او د هرې یوې په غورځولو سره په معنا کې کوم بدلون نه راځي. نو څرګنده شوه، چې په جمله کې هسې بې ځایه او بې ګټې اوږدوالی راغلی دی او دې بې ګټې غیر متعین اوږدوالي ته تطویل ویل کېږي.

# حشو

حشو چې پښتو کې (حشوه) لوستل کېږي، په لغت کې (ډکون) ته ویل کېږي. لکه د بالښت ډکون: مالوچ یاداسې نور. او په اصطلاح کې د کلام هغه بې ګټې اوږدوالي ته ویل کېږي، چې زیاتي کلمې او عبارت معلوم او ټاکلی وي. که هغه ټاکلې کلمې یا ټاکلی عبارت وغورځول شي، نو په معنا کې بدلون او خلل نه پېښېږي. لکه: نن مې هم درس لوستی دی پرون مې هم لوستی ؤ، چې له نن نه مخکې دی، سبا به يې هم لولم، چې له نن نه وروسته دی، نو پرون معلوم دی، چې له نن نه مخکی دی، د (چې له نن نه مخکې دی) عبارت زیات دی او (حشو) ده. همدارنګه سبا هم معلوم دی، چې له نن نه وروسته دی، نو (چې له نن نه وروسته دی) عبارت بې ګټې زیات دی، چې (حشو) بلل کېږي.

# مساوات

مســـاوات په لغت کې برابرۍ ته ویل کېږي. کله چې دوه شـیان یو تر بله برابر وي، نو دواړه سـره مسـاوي ګڼل کېږي، او په اصــطلاح کې د کلام هغه عبارت ته ویل کېږي، چې له معنا ســره برابروي. مســاوات د (ایجاز) او (اطناب) تر منځ مرتبه ده، چې نه د ډېرې اوږدې معنا لنډ عبارت وي او نه د لنډې معنا اوږد عبارت وي. بلکې عبارت او معنا دواړه ســره مســاوي وي. د مســاوات بېلګې ته ضـرورت نشـته ځکه: هغه ټولې عامې خبرې او عبارتونه چې (ایجاز) او (اطناب) پکې نه وي (مساوات) دی.

# التفات

التفات په لغت کې یو خوا ته کتلو، متوجه کېدلو او مخ اړولو ته ویل کېږي. او په اصــطلاح کې په خبرو کې د یوه حالت نه بل حالت ته اووښتلو او بدلون ته (التفات) ویل کېږي، چې کله کله یې د ادبي ذوق څښتن کوي.

التفات کله له مخاطب نه غائب ته وی، لکه اســتاذ چې شــاګردانو ته وایي: بې ځایه خبرې مه کوئ، ناپوهه خلک بې ځایه خبرې کوي. یا: هغوی، چې بې ځایه خبرې کوي نه پوهېږي. او کله هم په نورو ډولونو وي.

## تجاهل العارف (ناکاري)

پښــتانه وايي: ځان يې ناګاره يا نانګاره کړ، او عربي کې ورته (تجاهل العارف) وايي. ناګاري یاتجاهل العارف دې ته ویل کېږي چې یو څوک په یوه خبره یا یو کارښــه پوه او خبروي، خو ځان داســې وښــايي چې ګنې نه پوهېږي او یا خبرنه دی. ناګاري یاعارفانه تجاهل ډېر اسباب او لاملونه لري. لکه: تعجب، په ښــه او بد صــفت کې مبالغه، رټنه، بې کچه مینه، فخر، خوند، ظرافت ښــوونه، ازموینه، د زياتو معلوماتو غوښــتنه، وېره، احترام، خير رسول، ضرر رسول، کینه او داسې نور. بېلګه يې داده:

پــه غليم چې غورځنګونــه کړي دا څوک دی!؟
پــه دښــمن چې تــاړاکونــه کړي دا څوک دی!؟
دا چې ســـر يې پــه خپــل لاس کې دی نيولی
شــپــه او ورځ چې يرغلونــه کړي دا څوک دی!؟

## قلب (نسکورول یا په څټ کول)

کله کله د یوه غرض لپاره دوه خبرې یو د بل په ځای راوړل کېږي؛ یادود، اصطلاح او محاوره جوړه شوې وي. لکه:
۱- ویاله بهېږي، چې په اصل کې اوبه بهېږي.
۲- څپلۍ وباسه، چې په اصل کې باید وویل شي چې: پښه وباسه.
ځکه چې تل له ظرف نه مظروف وځي، ننوتی شی له پاسني نه وځي. لکه: له څا، نه اوبه وځي، له بوجۍ نه شیان وځي، له کوټې نه انسان یا نور څه وځي، نو پښه هم له څپلۍ، بوټ او نورو پښې پوخو، نه وځي. خو محاوره داسې جوړه شوې چې: بوټ وباسه څپلۍ اوباسم.... چې داهم د معانیو د علم او د بلاغت یوه برخه ده.

## د مضارع په ځای ماضي

کله کله د راتلونکي په ځای تېر شوی وخت او زمانه یادېږي لکه چې څوک درته د داسې یو کار کولو ووایي چې ته یې کولو ته لېوال یې، نو له ډېر باورنه ووایې چې: ومې کړ. (ضرور یې

کوم او په کولو یې وشـمېره) دا هم د مقتضـی الحال مناسـب او د بلاغت یوه برخه ده.

# تغلیب

کله کله یو لفظ دغلبې او شـهرت له امله په نورو ډولونو راجح او غالب شـي لکه : پښـتو کې د(انسـا ن) یاد (څوک) په ځای (سـړی) ویل کېږي. کله کله ښـځې هم وایي چې سـړی داسـې وکړي یاسـړي داسـې کړي وای، یاهر سـړی پوهېږي، یا سـړي ته داښـه نه ښـکاري یا ښـه ښـکاري، یا نورې داسـې محاورې شـته... داهم د بلاغت خلاف نه دی بلکې د بلاغت یوه برخه ده.

# بيا ن

## د بيان لغوي معنا

بيـا ن پـه لغـت کې څرګنـدوالي، جلاکېـدو، وضــــاحت، فصاحت او ذکاوت ته ويل کېږي. (بَيِّنٌ) ښکاره، ژبه ور او هوښيار ته ويل کېږي. بيا ن مفرد دی ، جمع يې (اَبــيِنا) ده , او (بيّنه) دليل ته وايي. دليل هم د مدعا څرګندوونکی دی، او بائن طلاق ته ځکه بائن وايي، چې ښــځه او مېړه ســره جلا کوي او زړه بداوی يې ښکاره کوي.

## د بيان اصطلاحي معنا

په اصــطلاح کې بيا ن هغه علم دی، چې د هغه په واســطه انســا ن د خپل زړه مراد په داســې الفاظو ســره څرګند کړي، چې اور ېدونکي ته زړه پورې وي، اغېز پرې وکړي، په معنا کې څه غوټه او پېچلتياوونه لري او يوه معنا په مختلفو عبارتونو څرګنده شي. د همدې غرض لپاره ځانګړي بنسټونه ايښودل شوي دي.

هغه فنون او مباحث، چې د بیان علم یې څېړي په لاندې توګه دي:

## تشبـیـه

تشـبیه په لغت کې تمثیل او ورته ګڼلو ته ویل کېږي.
او پـه اصــطلاح کې: د ورتــه والي هغـه اړیکې دي، چې د یوه ځانګړي غرض لپاره یې ویونکی د دوه یا ډېرو تر منځ د یوه یا ډېرو مشــترکو صــفتونو له امله د برخیزونو په واسـطه څرګندوي.
تشــبیه په خبرو کې ښــکلا، خوند، او کیف زیاتوي او څرګندوي. که مونږ د یوه شي لپاره یو صفت ثابتوو، نو که وغواړو، چې د غه صــفت ښــه څرګند شــي، په ذهن کې ښــه انځور شــي او لا د پېژندلو وړ شـي، نو یو بل داسـې شـی پیدا کوو، چې دغه صـفت پکې لا زیات څرګندوي او بیا یې هغه ســره ورته بولو. لکه: که وغواړو چې د علم ښه والی او رڼا وښایو او د ناپوهۍ تیاره او بدي څرګنده کړو، نو وایو: علم لکه لمر غوندې روښــانه دی او جهل د تربږمۍ په څېر تیاره دی.

# د تشبیه بنسټونه

تشبیه په څلورو بنسټونو ولاړه ده:

**۱ - (مُشَبّه)** د کوم شي ورته والی چې بیانېږي (مشبه) بلل کېږي.

**۲ - (مُشــبّه بِهِ)** د کوم شي سره چې ورته والی لري (مشبه بِهِ) بلل کېږي.

**۳ - (د ورته والي وجه)** د دواړو تر منځ مشترک وصف ته د شِبْهِ وجه ویل کېږي.

**۴ - (د تشبیه ادات)** (برخیزونه) دا هغه برخیزونه دي، چې د هغو په واسطه د مشبه او مشبه به تر منځ د شبه وجه څرګندېږي.

د بېلګې په توګه:

احمد د ګل غوندې ښکلی دی.

۱ - احمد (مشبه).

۲ - ګل (مُشبه بِهِ).

۳ - ښکلا (د شِبه وجه).

۴ - غوندې (د تشبیه برخیز).

که ووایو: احمد ښــکلی دی. دا یوه عادي خبره ده، خو که ووایو: احمد د ګل غوندې ښکلی دی، نو دا جمله د تشبیه له امله ډېره خوږه او څرګنده شوه.

په تشبیه کې اصل مشبه بِهِ وي، په دې معنا چې د شبه وجه یکې نسبت مشبه ته ډېره ځواکمنه وي.
(مشبه) او (مشبه به) ته د تشبیه دوه خواوې یا اړخونه هم ویل کېږي.

## د تشبیه (ورته والي) برخیزونه

د تشبیه برخیز هغه لفظ ته ویل کېږي، چې تشبیه ترې څرګند یږي او مشبه او مشبه به سره تړي. پښتو کې د تشبیه برخیزونه دادي:

۱- لکه.
۲- غوندې.
۳- ورته.
۴- څېر.
۵- په شان.
٦- ته به وایې.
۷- په ډول.
۸- په رنګ.
۹- په دود.
۱۰- کټ مټ.

۱۱- داسې.
۱۲- هغسې.
۱۳- هسې.
۱۴- دغسې.
بېلګې يې دادي :
۱- زلمی لکه زمری دی .
۲- ګلاب د ياقوت غوندې سور دی.
۳- د غمي څېره سور ګل ته ورته ده.
۴- ځمکه د هندوانې په څېر ګرده ده.
۵- چمن د زمرود په شان شين دی.
٦- مالوچ داسې سپين دي ته به وايې چې واوره ده.
۷- ماشوم د ګل په ډول ښه ښکاري.
۸- کارغه د تبې په رنګ تور وي.
۹- شينواري د مومندو په دود مېلمه دوستان وګڼي دي.
۱۰- فيصل کټ مټ زبير غوندې دی.
۱۱- په پسرلي کې غرونه او رغونه دا سې ښه ښکاري لکه ګلدار ټوکر چې پرې غوړېدلی وي.
۱۲- بريالي هغسې نوم وګاټه لکه د پلار يې.
۱۳- هسې کار مه کوه لکه افتاب چې کړی ؤ.
۱۴- د غسې کار کوه.

# د تشبـيـه ډولونه

## لومړی وېش (د دواړو خواو له مخې)

د تشبيه دواړه خواوې (مشبه او مشبه به) په دوه ډوله دي :
۱ - حسي.
۲ - عقلي.

## حسي تشبـيـه

حســـي تشـــبيه هغې ته ويل کېږی، چې د هغې درک او پېژندنه په پنځو څرګندو حواســو کېدای شـــي . او عقلي هغې ته ويل کېږي، چې درک او پېژندنه يې په عقل صورت مومي.
پنځه څرګند حواس دادي:
۱ - باصره (د ليدلو ځواک چې په سترګو کې دی).
۲ - سامعه (د اورېدلو ځواک، چې په غوږونو کې دی).
۳ - ذائقه (د څکلو ځواک، چې په ژبه کې دی).
۴ - شامه (د بويولو ځواک، چې په پوزه کې دی).

۵- لامسه (د لګېدلو ځواک، چې په ټول بدن کې دی، خو د لاسونو په خپړو کې زيات دی).

نو تشبيه د دواړو خواو په اعتبار په څلور ډوله ده:

۱- چې مشبه او مشبه به دواړه حسي وي. لکه: په ښکلا کې چې د مخ تشبيه له سپوږمۍ سره ور کړې.

۲- چې مشبه او مشبه به دواړه عقلي وي. لکه: په ناپوهۍ کې چې د جهل تشبيه له مرګ سره ورکړې، يا لکه : بې لاري د ړوند والي په څېر ده.

۳- چې مشبه حسي وي او مشبه به عقلي وي. لکه: د ناپوه استاذ تشبيه چې له ولږې يا تندې سره ورکړې.

۴- چې مشبه عقلي وي او مشبه به حسي وي. لکه: د علم تشبيه چې له رڼا سره ورکړې.

## خيالي تشبيه

خيالي تشبيه د حسي تشبيه له جملې نه ده او دا هغه ده، چې مشبه به وجود ونه لري، خو ماده يې موجوده وي. لکه :

ستا نرى معتدل قد دى
اى د سپينو زرو سروې

دلته شــاعر د ښــکلي معتدل قد تشــبيه د ســپينو زرو له سروې سره ورکړه. نو (مشبه به)- چې د سپينو زرو سروه ده- هيڅ وجود نه لري، خو ماده يې شته، چې د سروې ونه او سپين زر دي.

# وهمي تشبيه

وهمي تشــبيه د عقلي تشــبيه له جملې نه ده او دا هغه ده، چې په څرګندو حواســو د مشــبه به ادراک نه کېږي، بلکې اصــلاً موجوده نه وي، خو وهم جوړه کړې وي. که موجوده شــي بيا به محســوســه وي. لکه: د بدرنګو غاښــونو تشــبيه، چې د (بــــبو) له غاښونو سره ورکړې، نو ببو خو نشته خو که وای محسوس به ؤ.

# د تشبيه دويم وېش

د تشــبيه دويم وېش د اِفراد او ترکيب له مخې دی، چې د تشبيه دواړه خواوې (مشبه او مشبه به) به يا:

۱- مفردې وي. لکه: د کارغه غوندې مخ، چې (مخ) مشــبه دی، (کارغه) مشبه به دی او دواړه مفرد دي.

۲- یا به مرکبې وي. لکه: دوړوکتوب زده کړه لکه د کاڼي کرښــه ده. (د وړکتوب زده کړه) مشـبه دی او مرکب دی او (د کاڼي کرښـه) مشبه به دی او داهم مرکب دی.

۳- یا به مشـــبه مرکب وي او مشـــبه به به مفرد وي. لکه: د لیلا غاښـونه د ږلۍ غوندې دي. (د لیلاغاښـونه) مشـبه دی او مرکب دی، (ږلۍ) مشبه به ده او مفرد دی.

۴- او یا به مشبه مفرد وي او مشبه به به مرکب وي. لکه: علم لکه د لمر رڼا ده، (علم) مشـبه دی او مفرد دی (دلمر رڼا) مشـبه به ده او مرکب دی.

## د تشبـیـه دریم وېش

د تشبیه دریم وېش د تشبیه د دواړو خواو د شمېر له مخې دی. او دا تشبیه په څلور ډوله ده:

۱- ملفوف.

۲- مفروق.

۳- تسویه.

۴- جمع.

## ۱- ملفوف (یوځای او تړلې)

دا هغه تشبیه ده، چې مشبه او مشبه به ګڼ او له یوه نه زیات وي، خو د مشبه افراد یوې خواته وي او د مشبه به افراد په ترتیب سره بلې خواته وي. لکه: علم او جهل لکه رڼا او تیاره دي.

(علم) یوه مشبه ده (جهل) بله مشبه ده او دواړه یوې خواته دي. (رڼا) یوه مشــبه به ده او (تیاره) بله مشــبه به ده او دواړه بلې خواته دي.

## ۲- مفروق (جلا)

دا هغه تشــبیه ده، چې دواړه خواوې یې متعددې (ګڼې) وي، خو هرې مشــبه سره خپله مشــبه به یو ځای راغلې وي او هره مشــبه او مشبه به د بل مشبه او مشبه به نه جلا راغلې وي. لکه:

نــفاق لکه تور تم دی جنګونه لکه کــندې
شیطا ن پکې تېله کړو غلیم وهي ملنډې

## ۳- تسویه

دا هغه تشبیه ده، چې مشبه متعدده او مشبه به یوه وي. په دې معنا چې د دوه یا ډېرو څیزونو تشبیه له یوه شي سره ورکول شوې وي، نو د مشبه ټول افراد په تشبیه کې سره برابر وي. لکه:

د بورې ویر د کونډې اه د یتیمانو فریاد
چې ټول یوځای شي لکه تندر به مانې رنګوي

## ۴- جمع

دا هغه تشبیه ده، چې مشبه یو او مشبه به متعدد وي. په دې معنا چې د یوه څیز تشبیه له ډېرو سره ورکول شوې وي. لکه:

دا پارول به مې د ظلم سلطه کړي ډوبه
لکه څپې او طوفانونه، چې بېړۍ ډوبوي

(پارول) مشبه ده او یوه ده، (څپې او طوفانونه) مشبه به ده او ګڼ دي.

# د تشبیه ځلورم وېش

د تشـــبېه ځلورم وېش د ورته والي د وجهې له مخې دی.
لکه مخکې مو چې وویل، د دواړو خواو (مشبه او مشبه به) تر منځ مشترک وصف د ورته والي وجه بلل کېږي او دا په شپږ ډوله ده:
۱- بېلګیزه (د تمثیل) تشبېه.
۲- نا بېلګیزه تشبېه.
۳- شیند لې (مفصله) تشبیه.
۴- رېشلې (مجمله) تشبېه.
۵- نږدې سپکه (قریبه مبتذل) تشبیه.
۶- لرې نااشنا (بعید غریب) تشبیه.

## ۱- بېلګیزه (دتمثیل) تشبیه

دا هغه تشبیه ده، چې د ورته والي وجه داسې یو وصف وي، چې له ګڼو څیزونو یا حالا تو او مراحلونه اخیستل شوی وي. لکه:

دا انسان لکه نبات دی، چې پیدا شي
را ټوکېږي بیا لوېږي بیا پنا شي

دلته د ورته والي وجه پیداوښت او پنا ده، چې د نباتاتو د زرغونېدو د مختلفو مراحلو نه اخیستل شوې ده؛ لومړی تنکی زرغونه وي، بیا ورو، ورو لویه او کلکه شي، بیا بېرته مخ په زوال او په پای کې پنا او له منځه لاړه شي.
بېلګیزه تشبیه تر ټولو بلیغه تشبیه ده

# ۲- نا بېلګیزه تشبیه

دا هغې تشبیه ته ویل کېږي، چې د ورته والي وجه دا سې وصف نه وي، چې له ګڼو نه اخیستل شوی وي، بلکې له یوه نه اخیستل شوی وي. لکه:

د ادیب ژوندون معنا ده
له مادي ژوند نه محروم دی
دا قلم لکه اماده
ډوډۍ نه ګټي مظلوم دی

## ۳ - شیند لې (مفصله) تشبیه

دا هغه تشبیه ده، چې د شبه وجه (د ورته والي لامل) پکې څرګند یاد شوی وي. لکه عبدالحمید بابا چې وایي:

لکه سرد پسه په اور غاښونه سپین کا
ما له نن له ډیره غمه خندا راغله[1]

## ۴ - رېشلې (مجمله) تشبیه

دا هغه تشبیه ده، چې د ورته والي لامل پکې څرګند نه وي یاد شوی. لکه: شین ګل لکه زمری دی. چې زړورتیا پکې نه ده یاده شوې.

---

۱ - دېوان عبدالحمید: ۹۹.

## ۵ - نږدې سپکه (قريبه مبتذل) تشبيـه

دا هغه تشبيه ده، چې ځرګنده وي، له مشبه نه مشبه به ته ذهن ډېر زر او په اسانۍ سره انــتـــقال کوي او کوم دقت او فکر ته اړتيا نه لري. لکه د ښکلي مخ تشبيه چې له سپوږمۍ سره ورکړې، يا د اننګو تشبيه له ګلاب سره ورکړې.
ابتذال (سـپکوالي) ته ويل کېږي، نو دې تشـبيه ته ځکه (قريب مبتذل) ويل کېږي، چې د ورته والي لامل ډېر په اسانۍ سره او ډېر زر پېژندل کېږي، نو په ذهن ډېره سپکه تماميږي او د فکر او دقت دروندوالي ته اړتيا نه پېښېږي.

## ۶ - لرې نااشنا (بعيد غريب) تشبيـه

داد مبتذل تشبيه په خلاف ده، چې ډېره ځرګنده نه وي او د مشبه نه مشبه به ته ذهن زر او په ا سانۍ سره نه اوړي، بلکې دقت او اند ته اړتيا پېښېږي. لکه: د جړو سوډاني ډول وېښتانو تشبيه، چې د (افتيمون) (زيړ تاري) سره ورکړې.

(افتیمون) هغه زیړ بې پاڼو نبات دی، چې بېخ نه لري او د مزو په څېر د ځینو ونو د پاســه ډېر جړ جړ پروت وي، نو د جړو وېښــتانو تشــبېه د جړ افتیمون (زیړ تاري) سـره څه فکر او دقت ته اړتیا لري، نو له همدې امله دا لرې ناآشــنا تشــبېه ده. او د دې ډول تشبېه له ډولونو نه (خیالي) او (وهمي) تشبېه هم ده، چې مخکې د حسي او عقلي په بحث کې وڅېړل شوې.

## د تشبـېـه پنځم وېش

د تشبېه پنځم وېش د برخیزونو (اداتو) له مخې دی، چې په درې ډوله ده:

۱- مرسله.

۲- مؤکده.

۳- بلیغه.

## ۱ - مرسله تشبېه

دا هغه تشبېه ده، چې برخیزونه پکې یاد شوي وي لکه مخکې چې ګـنـې بېلګې تېرې شوې.

## ۲ - مؤکده تشبیه

دا هغه تشبیه ده، چې د تشبیه برخیزونه ور څخه غورځېدلي وي او د ورته والي لامل یاد شوی وي. لکه :

په ارزښت کې ته سره زر یې
په ښکلا کې ته قمر یې

اصل کې داسې دی، چې: ته لکه سره زر یې او ته لکه قمر یې، خو (لکه) ــــ چې د تشبیه برخیز دی ــــ غورځېدلی دی، خو د شبه وجه، چې ارزښت او ښکلا دي یاد شوي دي.

## ۳ - بلیغه تشبیه

دا هغه تشبیه ده، چې برخیزونه او د ورته والي لامل (د شبه وجه) دواړه ور څخه غورځېدلي وي. لکه :

وعدې دې ډېرې دي، خو دوه توته ارزښت یې نشته
سر دې کدو دی خوله دې سوړه ده باور پرې نه کړم

په دې کې د سـر تشـبيه له کدو سـره ورکول شـوې ده او د خولې تشبيه له سوړې سره؛ د تشبيه برخيزونه هم پکې نشته او د شبه وجه چې بې ارزښتي ده- هم غورځېدلې ده.

## د تشبــيه شپږم وېش

د تشبيه شپږم وېش نا پرتليز دی، چې په دوه ډوله ده:
۱- ترځنی.
۲- نسکوره.

## ۱- ترځنی (ضمني) تشبيه

دا هغه تشبيه ده، چې د مشبه او مشبه به وضع د تشبيه په معلومو صورتونو نه وي شوې، بلکې د معنا په ترځ کې ځرګند یږي. لکه :

بـې غـيـرتـه او بـې نـنګ کلـه شــرمـېـږي
د غويي عورت که ښــکاري څه باک نه کا

## ۲- نسکوره یا اړولې (مقلوبه یا معکوسه) تشبیه

نسکوره تشبیه هغه ده چې مشبه او مشبه به یو د بل په ځای شي، نوکته او غرض د مشبه به خوا کې وي. او دا هغه وخت راځي، چې د ورته والي لامل (د شبه وجه) په مشبه بِهِ کې له مشبه نه زیات څرګند او ځواکمن وګڼل شي. لکه: دا ګل داسې ښکلی دی لکه د لیلا اننګي.

## د تشبیه ګټې

تشبیه د ډېرو غرضونو او ګټو لپاره راوړل کېږي او دا ټول په مشبه کې وي. لکه: تحسین، د پټ حال او وصف څرګندول، نا اشنا اشنا ګرځول، د اورېدونکي په ذهن کې ښه کښېنول، درونډ ګڼل، سپکاوی، نادر او سخت ګڼل او داسې نور.

# د تشبیه ځینې بېلګې

تشبیه یو داسې بحر دی، چې ساحل نه لري. او ځینې مشهورې او مستعملې بېلګې یې دادي:

لکه: د ښکلي مخ تشبیه له سپوږمۍ سره، د بدرنګ مخ له تبۍ او کارغه سره، د زلفو مارانو سره، د زړه ور له زمري سره، د بې زړه له ګیدړ سره، د مکر جن او چلباز له ګیدړ سره، د کم عقل له خره سره، د جنګیالي او غورځنګي له باز سره، د غفلت له خوب سره، د علم او عدل له رڼا سره، د ناپوهۍ او ظلم له تیارې سره، د کلکوالي له تیږې، او سپنې، فولادو او سندان سره، د نازکوالي له ګل او پېروي سره، د لوړوالي له غره او اسمان سره، د ټیټوالي له کندې، کوهي او تحت الثریٰ سره، دنه کېدونکي، نه پیدا کېدونکي او نه راګرځېدونکي له مړي او عنقا سره، د پارېدنې او هیجان له طوفان سره، د غضب، غوسې او عصبیت له اور سره، د سوړوالي له واورې، ږلۍ او اوبو سره، د تېز اس له باد سره، د ښو خبرو له مرغلرو سر، د بې ځایه مداخله کوونکي له مچ سره، د ضرر رسونکي له مار او لړم سره، د سخي له حاتم طائي سره، د حریص له کارغه او ګونګټ سره، د ګړندي له باد سره، د سست او سوړ له مېښې سره، د ګرم او تېز له مرچک سره، د بې شرم او سپین سترګي

له سـپي سـره، د ضـدي له ابوجهل سـره، د ريښـتوني له ابوبکر رضي الله عنه سره د عادل له عمر بن الخطاب رضي الله عنه او عمر بن عبدالعزيز رضي الله عنه سره، د سخي له عثمان رضي الله عنه سره، د زړه ور له علي رضي الله عنه سره، د ظالم له حجاج بن يوسـف سـره، .دډېر دروغجن دامريکااو بي بي سـي راډيوګانو سره.

## عيبجنه تشبـيـه

ښه تشبيه هغه وي، چې بې تکلفه پرې اوربدونکی پوه شي او د شبه وجه څرګنده وي. او عيبجنه هغه تشبيه ده، چې د شبه وجه او لا مل پکې ښکاره نه وي، يا هغه وجه چې د متکلم مراد وي د تشبيه وجه نه شي ګڼل کېدی، ياد شبه وجه ډېره ناوړه، سخيفه او بې خونده وي، يا په مشبه به کې داسې يو وصف د شبه وجه وښودل شي، چې د هغه په مشبه کې هيڅ نه وي، يا د مشبه او مشبه به تر منځ وصـف سـم وي، خو د متکلم په وينا کې هغه قوت نه وي، چې تعبير يې د شــبه وجه څرګنده کړي، نور ګڼ عيوب هم کېدی شــي، چې د ادبي ذوق څښتنان يې ښه پېژني.

بېلګې يې دادي: ميرزا عبدالحنان بارکزی وايي:

داپې خـال دی چې تر زلفو لانـدې کښـلی
کـه مېږي د مـار پـه خولـه کې ځـای نيولی

دلته د تندي خال د مار په خوله کې له مېږي ســره مشـــابه ګڼل شوی دی، چې د تشبیه وجه بېخي ناسمه او بې خونده ده. ځکه چې تندی او د مار خوله هیڅ ورته والی نه لري؛ که ځوک یې په تکلف ورته والی ثابتوي، نو داسـې به ښــکاري لکه چې یو څوک ووایي: د لیلا په مخ خال دا سې ښکاري لکه په تېپر باندې چې مچ کښېني؛ سره له دی، چې تېپر هم سپین دی، خو هر سپین ښکلی نه وي او د لیلا مخ هم سـپین دی، چې ښـکلی دی. او په تېپر، چې مچ کښــېني هم له ورا یه ښــکاري او د لیلا د مخ خال هم له ورا یه ښکاري، خو دا تشبیه بېخي نا سمه ده ځکه، چې د لیلا د مخ خال ښـکلی ښـکاري او په تېپر مچ هیڅ ښـکلی نه ښـکاري، نو ځرګنده شوه، چې دلته د شبه وجه او لامل هیڅ وجود نه لري.

یا لکه د میرزاعبدالحنا ن دې لاندې بیتونو کې د تشبیه عیبونه:

(۱) قد دې راسـت دی همېشــه تر رسـا فکر
ځکــه یم مشــغول دا ســتـا د قـد پـه ذکر

دلته د سم او ښکلي قد تشبیه له رسا فکر سره نه جوړېږي .ځکه چې فکر جوهر دی او قد جســم دی، د فکر ســموالی د قد د ســموالي په څېر په ذهن او تصــور کې نه مجســم کېږي، نو د ورته والي لامل هم سم نه برېښي. که د یوه کار، نظام او خبرې د سموالي تشبیه له رسا فکر سره ورکول شوې وای، نو بیا سمه وه او د تشبېه هغه ډول بلل کېده، چې مشبه حسي وي او مشبه به عقلي وي، خو

دلته يواځې سـموالی نه بلکې د سـموالي د ښـکلا تشـبيه ښـه نه برېښي.

البته په دوهم بيت کې تشبيه ښېخي سمه او ښکلې ده، چې وايي:

دا قـد نـه دی يـوه سـروه ده نـازکـه

پـه رفتـاريې لـه هوښـيـار کړه لاره ورکـه

دلته د سم قد او سروې د ونې تر منځ تشبيه ښېخي سمه ده او د شبه وجه بالکل څرګنده ده .

(۲) سـاعد نه دی دوه ښـاخونه د مرجان دي

خلقي يې پـه ديـدن پسـې حيران دي

دلته د دوه متو تشبيه د مرجانو د دوه ښاخونو سره ورکول شوې ده، خو افسوس، چې مرجان ښاخونه نه لري، نو ځکه تشبيه سمه نه برېښي. او که بوټی ترې واخلې، نو شاذ لغت دی او پښتو کې هيڅ استعمال نه لري.

(۳) وه څه غوړ دی او که ګل دی په چمن کې

کـه توی شـوې شـګوفـه ده پـه چمن کې

دلته د غوږونو تشـبيه له چمن کې ګل او پرېوتې شـګوفې سـره ورکول شـوې ده، چې هيڅ سـمون نه خوري او تشـبيه سـمه نه برېښي.

# مجاز

مجاز د بیان د علم یو ارزښتناک بنسټ دی، چې د کلام د ښــکلا او پراخوالي، د معنـا څرګنـدولو او زیـاتوالي، د تعبیر د باریکیو او نورو ګڼو ګټو او غرضـــونو لپاره راوړل کېږي. د بیان علم مجاز څېړي، نو له همدې امله مونږ د مجاز عنوان کېښـــود او حقیقت ته مو په عنوان کې ځای ورنه کړ، خو د مجاز د پېژندلو لپاره حقیقت هم باید وپېژنو.

له یوه لفظ نه هغه معنا اخیســتل چې کومه ورته ایښــودل شوې ده او بنسټیزه معنا یې ده، حقیقت دی.

لکه هر شـــي لپاره چې د افهام او تفهیم له امله یوځانګړی نوم ایښودل شوی دی.

مجاز په لغت کې تېرېدونکي یا تېر شوي ته ویل کېږي.

په اصــطلاح کې مجاز هغه لفظ ته ویل کېږي چې د څه مناسبت او اړیکو له امله له اصـلي ایښـودل شـوې معنا نه پرته په بلې معنا اسـتعمال شـوی وي، خو داسـې قرینه او نښــه وي، چې حقیقي معناترې نه شي اخیستل کېدی.

د حقيقي او مجازي معنا تر منځ اړيکې او مناسبت به کله مشـــابهت وي، چې دې ډول ته (اســـتعاره) ويل کېږي او کله به نور مناسبتونه وي، چې دې ډول ته (مرسل مجاز) ويل کېږي.

حقيقت او مجاز په لومړي وېش سره درې ډوله دي:

۱- لغوي.

۲- شرعي.

۳- عرفي.

خو کله، چې مطلق مجاز ياد کړای شي او د لغوي، شرعي او عرفي قيد ورسره نه وي، نو مراد ترې لغوي مجاز وي. که د لغت (ژبې) په اصطلاح کې راوړل شوی وي، لغوي حقيقت يا مجاز دی.

که د شـريعت په اصــطلاح کې راوړل شــوی وي، شــرعي حقيقت يا مجاز دی.

که د دود او رواج په محاوره کې راوړل شـــوی وي، عرفي حقيقت يا مجاز دی.

د بېلګې په توګه:

۱- (زمری) چې د يوه ځانګړي ځناور نوم دی، د دغه ځناور په هکله لغوي حقيقت دی او د زړه ور انســا ن په هکله لغوي مجاز دی، چې استعاره بلل کېږي.

۲- (لمونځ) د ځانګړي عبادت لپاره شــرعي حقيقت دی او د ښـــې يادونې لپاره لغوي مجاز دی، چې لمانځنه بلل کېږي.

۳- (ځناور) د درنده ګانو لپاره عرفي حقیقت دی او د کم عقل انسان لپاره عرفي مجاز دی.

مجاز لومړی په دوه ډولو وېشــل کېږي، نور ډولونه یې ډېر دي، چې وروسته به راشي، هغه دوه ډوله دادي:

۱- مرسل مجاز.

۲- استعاره.

دا دواړه بیا مفرد او مرکب لري. مفرد یې په کلمه کې او مرکب یې په کلام کې راځي.

# لغوي مفرد مرسل مجاز

دا هغه کلمه ده، چې د ځینو اړیکو له امله قصداً په اصلي معنا کې نه وي استعمال شوې، خو دا سې څه قرینه او نخښه وي، چې د متکلم اصلي معنا مراد نه ده.

او دا اړیکې ډېرې زیاتې دي، چې د سالم ادبي ذوق څښتن یې پېژني؛ ځینې یې دادي:

# ۱ - سبب نه مسبب اخيستل

سبب د يوه شي (کبل) ته ويل کېږي او مسبب هغه شي ته ويل کېږي، چې د هغه بل له کبله منځ ته راغلی وي.

لکه: ورېځ د باران لپاره سبب دی او باران مسبب دی؛ که څوک ووايي: ورېځ وورېده، له ورېدونه مقصد باران ورېدل دي، دا مرسل مجاز شو، يا ووايي: ژرنده مې را وړه، او مقصد يې د اوړو راوړل وي، نو ژرنده د اوړو سبب دی او اوړه مسبب دی؛ دلته سبب ياد شو او مراد ترې مسبب دی، نو دا مفرد مرسل مجاز شو.

يا ووايي: سليمان ته لاس ورکړه، نو دلته لاس سبب دی او مراد ور څخه مدد او مرسته ده چې مسبب دی.

# ۲ - مسبب نه سبب اخيستل

لکه څوک ووايي: ډېر غنم و ورېدل . نو غنم نه ورېږي بلکې باران ورېږي، چې د غنمود کېدو لپاره سبب دی او غنم مسبب دی، خو دلته له مسبب نه - چې غنم دي - سبب واخيستل شو، چې باران دی .

## ۳- لازم نه ملزوم اخیستل

لازم هغه شي ته ویل کېږي، چې د هغه وجود د یوه بل شي د موجودیت په وخت کې منځ ته راځي. لکه لمر ملزوم دی او ورځ لازم، که څوک ووایې، چې: ورځ راوختته او مقصد یې د لمر راختل وي، نو دلته له لازم نه ملزوم واخستل شو.

## ۴- ملزوم نه لازم اخیستل

لکه چې څوک ووایي: سترګې یې ډکي خښې کړې.
نو له دې نه مراد د ســترګو کتل او نظر دی. نظر لازم او سترګې ملزوم دی، دلته ملزوم نه لازم واخیستل شو او دا هم مفرد مرسل مجاز دی.

## ۵- کل نه جزء اخیستل

کل ټول ته او جزء یوې برخې ته ویل کېږي.

لکـه، چې څوک ووايي: د چينې اوبـه مې وڅښــلې، نو د چينې د ټولو اوبو څښل خو ممکن نه دي، دلته مراد د چينې د اوبو يوه برخه ده، نو کل چې ټولې اوبه دي ياد شو او مراد ترې جزء دی، چې د اوبو يوه برخه ده.

## ۶- جزء نه کل اخيستل

لکه چاته ووايې: ســترګې دې را واړوه، نو يوائې ســترګې خو نه را اوړي مراد ترې ټول مخ دی، چې ســـترګې يې يو جزء يا برخه ده، دلته جزء ياد شـو، چې ســترګې دي او کل ترې واخيســتل شو، چې مخ دی.

## ۷- آلې نه د هغې اغېز اخيستل

کله کله ديوه کار آله يادېږي، خو مراد ترې د آلې اغېزه او کار وي. لکه د پښتو متل دی چې: ژبه هم کلا ده هم بلا ده.
نو دلته له ژبې نه مراد خبرې دي، چې ښــې خبرې کلا ده او انســا ن له کړاوونو او بدو عواقبو څخه ژغوري او بدې خبرې بلا ده انسا ن په کړاوو اخته کوي.

## ۸ - عام نه خاص اخیستل

لکه کومې غونډې نه ډېر خلک راغلي وي او څوک ووايي:
پښتنو، بلوڅانو، تاجکانو، ازبکانو، هزاره و، نورستانیانو او پشه یانو په غونډه کې ګډون کړی ؤ.
نو دلته د هر قوم ټول افراد مراد نه دي بلکې هغه خاص خلک دي، چې په غونډه کې یې ګډون کړی ؤ.

## ۹ - خاص نه عام اخیستل

لکه (بېټنيان) چې د بېټ نیکه اولاد دی او بېټ د یوه خاص سړي نوم دی، چې د پښتنو د یوې قبیلې نیکه ؤ، خو دلته ترې عام واخیستل شول.

## ۱۰ - د تېرې زمانې له مخې

کله کله یو څاته د تېرې زمانې له مخې نوم اخیستل کېږي. لکه چې یو څوک په تېر وخت کې په کوم حکومتي منصب پاتې شوی وي او بیا وروسته یې هغه منصب پرې ایښی وي یا متقاعد

وي، خوپه هماغه نامه یادیږي لکه: قاضي، جنرال، مدیر، معلم او داسې نور.

## ۱۱- د راتلونکې زمانې له مخې

د راتلونکې په اعتبار هم کله کله یو څوک یادیږي. لکه د طب دپوهنځي محصل ته، چې ډاکټر وو ایې، نو هغه لا ډاکټر شوی نه وي، خو راتلونکي وخت کې د بریالیتوب او فراغت په صورت کې ډاکټر ګڼل کیږي. د همدې راتلونکې په اعتبار ورته ډاکټر ویل لغوي مفرد مرسل مجاز دی.

## ۱۲- ظرف نه مظروف اخیستل

ظرف لوښي ته ویل کیږي او مظروف هغه شي ته ویل کیږي، چې دې لو ښي کې پروت دی یا ورپورې نښتی دی. کله کله ظرف یاد شي، خو مراد ورڅخه مظروف وي. لکه: ویاله بهیږي، ویاله ظرف دی او اوبه پکې مظروف دی، نو ویاله خونه بهیږي مراد ترې اوبه دي چې بهیږي.

يا څوک ووايي: سر مې لنډ کړ، او مراد يې د سر وېښتان وي، نو سـر ظرف دی او وېښــتان پرې مظروف دی او د سـر له لنډولو نه مراد د وېښتانو لنډول دي.

## ۱۳- مظروف نه ظرف اخيستل

لکه: اوبه وچې شـوې. اوبه خو نه وچېږي خو مراد ترې د مځکې، ويالې او يا بل ظرف وچېدل دي.

## ۱۴- د بدل اړيکې

کله کله يوه کلمه يا لفظ استعمال شي او مراد ترې بل لفظ وي لکـه: لمونځ مې خلاص کړ يـا لمونځ مې ختم کړ او لـه دې ختمېدو نه مراد د لمانځه ادا کول وي.

## ۱۵- د عوض اړيکې

لکه: پيســې مې وخوړې. پيســې خو نه خوړل کېږي بلکې مراد ترې دخوړو هغه شی دی، چې په پيسو اخيستل شوی وي.

# ۱۶-د کوانډیتوب اړیکې

لکه: افغانستان له ازبکستان سره خبرې وکړې.
افغانستان او ازبکستان هېوادونه دي او خبرې نه شي کولای؛ مراد ترې د افغانستان او ازبکستان ځینې مسئول چارواکي اشخاص دي.

# ۱۷- اشتقاقي اړیکې

کله کله یوه صیغه یاده شي او مراد ترې بله صیغه وي. لکه چې مصدر یاد شي او مراد ترې اسم مفعول وي. لکه:
دا د الله پیداوښت دی، مراد ترې د الله تعالی پیدا کړای شوي شیان دي.
یا: تور پېکی ستر ده. یعنې مستوره ده. او داسې نور.....
دا ټول د لغوي مفرد مرسل مجاز ډولونه دي.
مجاز کې ایجاز وي، نو له همدې امله د بلاغت یو ارزښتناک بنسټ دی که مونږ ووایو:

١ - جلال اباد کې یوه لویه غونډه وشوه دې غونډې په افغانستان کې هر ډول بهرنۍ لاسوهنه وغندله یا:
٢ - جلال اباد کې یوه لویه غونډه وشوه د دې غونډې ټولو ګډون کوونکو په افغانستان کې هر ډول بهرنۍ لاسوهنه وغندله.
په لومړنیو جملو کې غندونکې غونډه شوه او په دویم ډول جملو کې غندونکي د غونډې ګډون کوونکي شول.
لومړي عبارت کې د غونډې غند نه مجاز دی او په دوهم عبارت کې د ګډون کوونکو غند نه حقیقت دی؛ د مجاز عبارت د حقیقت د عبارت په نسبت لنډ دی او ایجاز پکې دی، نو ځکه بلیغ دی.

## استعاره

استعاره په لغت کې د عاریت (امانت) طلب ته ویل کېږي. خو هغه امانت، چې د څه وخت لپاره ترې ګټه اخیستل کېږي. عربي کې امانت هغه ته ویل کېږي، چې چاسره د ساتنې لپاره کېښودل کېږي او استعمال یې نه شي کېدای او عاریت هغه ته ویل کېږي، چې د استعمال او ګټې اخیستلو لپاره وي. لکه له چا څخه کتاب د مطالعې لپاره واخلې، یا جامې د اغوستلو لپاره واخلې او بیا یې په ټاکلي وخت بیرته ورکړې.

په اصطلاح کې استعاره هغه لفظ ته ویل کېږي، چې د مشابهت (ورته والي) له امله له اصلي وضع شوې معنا نه پرته په بله معنا استعمال شوی وي.

مرسل مجاز سره د استعارې توپیر داشو چې: مرسل مجاز کې لامل له مشابهت نه پرته نور اړیکې وي. لکه مخکې چې تېر شول او په استعاره کې اړیکې مشابهت وي.

او له تشبیه سره یې توپیر دادی چې په استعارې کې یوائې مشبه به یادېږي او د مشبه یادونه پکې نه کېږي. همدارنګه د تشبیه برخیز او لامل هم نه یادېږي، او په تشبیه کې د دواړو یا ټولو یادونه کېږي، استعاره له تشبیه نه ډېره بلیغه وي.

د بېلګې په توګه که څوک ووایي: ما په پوهنتون کې د زمري غوندې سړی ولید.

دا تشبیه شوه. (زمری) مشبه به، (غوندې) د تشبیه برخیز، او (سړی) مشبه دی.

خو که ووایي: زمری مې ولید، او مراد یې زړه ور وي، نو دا استعاره شوه. د زمري نوم یې د زړه ور سړي لپاره عاریةً راواخیست او پرې یاد یې کړ.

# د استعارې بنسټونه

استعاره درې بنسټونه لري:

۱ - **مُســتعارمِنهُ**: یعنې له چانه چې اخیســتنه شــوې (چې مشــبه به دی) .

۲ - **مســتعار لَهُ**: یعنې د چا لپاره چې اخیســتنه شــوې (چې مشــبه دی) .

۳ - **مستعار**: یعنې هغه نقل شوی او اخیستل شوی لفظ .

(مستعار منه) او (مستعارله) د استعارې دواړه خواوې بلل کېږي .

د بېلګې په توګه:

نــن مــې پــه کــلــي کــې د ریــاب ولــیــد
د جــنــت لــوري تــه مــې بــاب ولــیــد

دلته د ســخي انســا ن لپاره د (دریاب) لفظ د اســتعارې په توګه راخیستل شوی دی او د سخاوت کارته د جنت باب (دروازه) اســتعاره شــوی دی او مشــبه به یادشــوی او د تشــبیه نور ارکان غورځېدلي دي؛ دا استعاره شوه.

په دې کې د استعارې بنسټونه دادي:

(۱) دریاب: مستعار مِنه .

(۲) سخي انسان: مستَعار لَهُ (چې محذوف دی) .

(۳) درياب: مستعار .

(۱) د جنت باب: مستعار مِنْهُ .

(۲)- سخاوت: مستعار لَهُ .

(۳)- باب: مستعار .

## د استعارې لومړی وېش

په لومړي وېش استعاره په درې ډوله ده:

۱ - تصريحي ( څرګنده).

۲ - کنايي (پټه).

خيالي (په اند کې).

## ۱ - تصريحي استعاره

که په خبرو کې يوازې (مشــبه بِهِ) ياد کړای شــي ، دې ته تصريحي (څرګنده) استعاره ويل کيږي او تحقيقي استعاره هم بلل کيږي. لکه:

ســـتــورونــه پــرخــه پــه ګــلاب وريــږي
کــه مــرغــلــرې پــه بــخــمــل دي تــيــتــې

په دې شعر کې شاعر د استعارې په توګه د سترګو لپاره ستوري او د اوښکو لپاره پرخه او د اننګو لپاره ګلاب را اخیستی او بیا یې په بخمل باندې د تیتو او خپرو مرغلرو سره تشبیه ورکړې ده، چې د اوښکو لپاره یې مرغلرې او د اننګو لپاره یې بخمل استعاره کړې دې.

په دې ټولو کې مشبه غورځېدلی او یوازې مشبه به یاد شوی دی، دې ته تصریحي یا تحقیقي استعاره ویل کېږي.

## ۲ - ۳ - کنایي او خیالي استعاره

که په خبرو کې مشبه بِهِ وغورځېږي او یوازې مشبه یاد شي، خو مشبه به ته دا سې ا شاره و شي، چې تشبیه ترې لازمېږي یعنې د مشبه به څه لوازم یاد کړای شي. دې ته (کنایي استعاره) ویل کېږي او (مکنیه استعاره) هم بلل کېږي؛ د کنایي استعارې په ترڅ کې خیالي استعاره هم څرګندېږي. ځکه چې خیالي استعاره اصلاً د کنایي استعارې قرینه او نخښه وي. لکه:

سور زما وطن ؤ د غیرت له حرارته
داړې د غلیم شولې اخته په څړیکو څړیکو

دلته د غلیم تشبیه له یوه بد ځناور سره ورکول شوې ده، خو مشبه به، چې بد ځناور دی، غورځېدلی دی؛ د مشبه به لوازم

چې «داړې» دي يادې شوې دي نو دا کنايي يا مکنيه استعاره شوه، او د دې په ترڅ کې خيالي اســتعاره هم څرګنده شــوه. او هغه داچې شــاعر په خپل خيال کې له غليم نه يو ســپی يا بد ځناور جوړ کړی دی او له وطن نه يو ســور ګرم شــی؛ سپی يابدځناورچې کله په ډېر ګرم شـــي داړې ښـــخې کړي نو د ډېر برېښ نه يې په غاښـــونو کې ددردونو څړيکې شـــي اوپه کوړنج کوړنج هغه ګرم شـــی پرېږدي او وتښتي.

شـــاعر هم وايي چې: زما وطن زما د وګړو د غيرت له امله ډېر ګرم ؤ او کله چې غليم ورته وبلو سېده او يرغل يې پرې وکړ، له سختې دردوونکې ماتې سره مخ شواو وتښتېد.

## د استعارې دوهم وېش

تحقيقي استعاره په دوه ډوله ده:

۱- حسي.
۲- عقلي.

## ۱ - تحقيقي حسي استعاره

حسي استعاره هغه ده، چې د (مستعار لَهُ) درک په حواسو کېدی شي. لکه: د بې زړه په هکله ووايې: ګيدړ دی.
دلته (مستعار له) بې زړه دی او محسوس دی دا حسي استعاره شوه .

## ۲ - تحقيقي عقلي استعاره

عقلي ا ستعاره هغه ده چې د (مستعارله) درک عقلا کېدی شي. لکه د محمود اخلاق چې له مرغلرو سره مشابه کړې او بيا مشبه، چې اخلاق دي، حذف کړې او مشبه به، چې مرغلرې دي، ياده کړې او ووايې:
محمود په مرغلرو کې پټ دی. نو مستعار له، چې ښه اخلاق دي په حواسو نه درک کېږي، خو په عقل يې درک کېدی شي.

# داستعارې دریم ویش

استعاره د مستعار په اعتبار په درې ډوله ده:

۱- اصلیه.

۲- تصریحي تبعیه.

۳- کنایي تبعیه.

## ۱- اصلیه

اصلیه هغه استعاره ده، چې مستعار جامد نوم یا مصدر وي. لکه ښکلي مخ لپاره چې سپوږمۍ استعاره کړې یا وهلو ته وژل استعاره کړې.

اصلیې ته ځکه اصلیه ویل کېږي، چې په مفهوم کې مستقله وي او د بل شي تابع نه وي.

## ۲- تصریحي تبعیه

تصــریحي تبعیه هغه اســتعاره ده چې مســتعار فعل وي.
لکه: حال وایي، چې هغه به راشي.
دلته له حال ویلو نه مطلب د هغه څرګند قرائن او نښې دي.
د څرګندو نښو لپاره (حال وایي) استعاره شو، او وایي فعل دی. نو دا تصریحي تبعیه استعاره شوه.

## ۳- کنایي تبعیه

دا هغه استعاره ده، چې مستعار مشتق نوم وي. لکه:
پــه خولې بانــدې غنــدنــه د بې ننګو علامــه ده
غنــدونکی یم پــه توره د عمــل میــدان تــه ځم
دلتــه (غنــدونکی) اســم فــاعــل دی او د (وژونکي) لپــاره مســتعار دی. تبعیې ته ځکه تبعیه ویل کېږي، چې په مفهوم کې د مصدر تابع وي.

# د استعارې څلورم وېش

د دوارو اړخونو (مستعار مِنهُ او مستعارلَهُ) په اعتبار مصرحه يا تصريحي استعاره په دوه ډوله ده:

۱- عِناديه.

۲- وِفاقيه.

## ۱- عناديه

دا هغه استعاره ده، چې دواړه خواوې يې په يوه شي کې نه شي يوځای کېدی. لکه بې لارې شخص ته چې د مړ لفظ استعاره شي، نو مړک او بې لاري په يوه شخص کې نه يوځای کېږي، ځکه چې بې لارې د ژوندي په هکله ويل کېږي، خو دلته د استعارې په ډول بې لارې ته مړ وويل شو او دا عناديه استعاره ده.

## ٢ - وفاقیه

دا هغه اســتعاره ده، چې دواړه خواوې په یوه شــي کې یوځای کېدی شــي. لکه: ژوند او هدایت دواړه په یوه شــخص کې یوځای کېدی شي، که هدایت موندونکي شخص ته ژوندی وویل شي او دا ژوند د هدایت لپاره استعاره شي دا وفاقیه استعاره ده.

## د استعارې پنځم وېش

عنادیه استعاره په دوه ډوله ده:

١- تملیحیه.

٢- تَهَکُمِیه.

## ١ - تملیحیه

دا هغه اســتعاره ده، چې مســـتعار د خپلې معنا په ضــد استعمال شي. لکه بې زړه سړي ته چې د زمري لفظ مستعار کړي.

## ۲- تهکّمیه

دا هغه استعاره ده، چې د ملنډو او استهزاء په توګه مستعار د خپلې معنا په خلاف استعمال شي.
لکه: یو چاته د وهلو په وخت کې ووایې چې:
اوس به خوشحال شې. یا: اوس به درته خوند درکړي. حال دا چې په وهلو انسان خفه کېږي، خو دلته د استهزاء(ملنډو) په توګه د خفګان لپاره خوشحالي او خوند مستعار یاد شوي دي.

## داستعارې شپږم وېش

داستعارې ددواړو خواو(مستعار منه او مستعار له) دمشترک مفهوم په اعتبار استعاره په دوه ډوله ده:
۱-عامیه مبتذله.
۲خاصیه.

## ۱- عامیه مبتذ له

دا هغه اســتعاره ده چې هر څوک پرې پوهېږي او زياتې څېړنې او پلټنې ته يې اړتيا نه پېښېږي لکه: د خبر لوڅ انسان په هکله ووايې: طوطي دی.

دې ډول اســتعارې ته (عاميه) هم ويل کېږي او (مبتذله) هم بلل کېږي.

په دې کې د دواړو خواو مشـــترک مفهوم (ورته والی) ډېر څرګند دی، چې ډېرې خبرې کول دي.

## ۲- خاصیه غر يـبه (نااشنا)

دا هغه اســتعاره ده، چې هر څوک پرې نه شــي پوهېدی او خاص خاص وګړي پرې پوهېږي چې د ادبي ذوق څښــتنان وي. لکه د رسـول الله صلی الله علیه وسلم د هدایاتو او ښـو اخلاقو په هکله دا شعر:

تل پخه خوږه مېوه ده، نه، مه، ولې، انکار نشــته
اوړی ژمی ورتـه يو دی، د موســم انتظـار نشـــتـه

په دې کې شـــاعر د رســـول الله صـــلی الله علیه وســـلم اخلاق، لارښوونې، عدل، انصاف او د ژوند نظام له مېوې سره مشابه کړل او مشبه يې حذف کړ، يوائې مشبه به يې د استعارې په توګه ياد کړ، بيا يې د دې ټولو ګټې او ارزښـــتونه د خوږ والي او پوخوالي په استعارې ياد کړل، او داسې تلپاتې او بې توپيره يې وبلل، چې هر وخت کې يې هر چاته ګټې رسېږي.

دې دومره باريکو اســـتعارو ته د هر چا ذهن نه رســـېږي او يوائې د ادبي ذوق څښـــتنان پرې پوهېږي، نو ځکه ورته ځانګړې نا اشنا استعاره ويل کېږي.

## د استعارې اوم وېش

دواړو خواو سره د اړيکو او مناسبتونو له مخې استعاره په درې ډوله ده:

۱ - مطلقه.

۲ - مُرَشَّحه.

۳ - مُجرده.

## ۱ - مطلقه (یواځې) استعاره

دا هغه اســتعاره ده چې د دواړو خواو (مســـتعارمنه او مستعار له) سره د اړیکو او مناسبت لرونکو الفاظو یادونه پکې نه وي.
لکه: زمری راغی. او مراد ترې زړور انسان وي.
یواځې ځکه بلل کېږي چې د دواړو خواو اړیکې لرونکي الفاظ ورسره نه وي یاد شوي.

## ۲ - مرشحه (ځواکمنه) استعاره

دا هغه استعاره ده چې له مستعارمنه (مشبه به) سره اړیکې او مناسبت لرونکی څه لفظ یا الفاظ پکې یاد شوي وي.
لکه: رېښتیا واخله دا ډېره دګټې سودا ده.
دلته د ویلو لپاره اخیســتل استــعاره شــول، او له دې اخیستلو سره مناسبت لرونکي الفاظ ګټه او سودا ده.
ځواکمنه ځکه بلل کېږي، چې په مناســبو الفاظو یې ملا تړ شــوی وي.

# ۳- مجرده (لغړه) استعاره

دا هغه استعاره ده چې د مستعارله (مشبه) سره مناسبت لرونکي الفاظ ورسره راغلي وي. لکه د عدل او انصاف د نظام په هکله دا شعر:

شپه تېره شوه څرګند شو نن سبا د توپیرونو
اوس ییلې سمې لارې شوې له کندو ګړنګونو

په دې شعر کې د ظلم او نابرابریو دور( پېر) ته د شپې استعاره او د عدل او انصاف دور ته د سبا استعاره استعمال شوه او بیا د عدل او انصاف، چې مستعار له دی، سره اړیکې لرونکي الفاظ سمې لیارې یادې شوې او د ظلم، چې مستعار له دی، سره اړیکې لرونکي الفاظ یاد شول، چې: کندې او ګړنګونه دي.

لغړه استعاره له دې امله لغړه بلل کېږي، چې زیاته مبالغه پکې نه وي.

# تمثيلي (د متل) استعاره

دا هغه ترکيب يا خبرې دي، چې د ورته والي له امله په اصلي معنا کې نه وي استعمال شوې او داسې نښه وي، چې اصلي معنا ترې اخيستل کېدی نه شي. لکه: (ترکاڼي د بيزو کار نه دی).
دا متل په هغه ځای کې ويل کېږي، چې څوک داسې يو کار ته ځان ورانديې کړي، چې له وس او استعداد نه يې پوره نه وي.
د دې متل د جوړېدو اصلي کيسه داسې وه، چې يوه ترکاڼ په غره کې لرګي وهل، د ورځې په اخر کې يو لرګی داسې پاتې شوی دی، چې په منځ باندې د چولو او دوه ځا يه کولو لپاره يې پکې پانې تک وهلې دي، څه چاود پکې شوی دی او نور يې پرې ايښی دی، يوه بيزو راغلې ده او په لرګي ناسته ده، په پانو يې زورونه کړي دي کله چې پانې وتلې دي ، چاود سره ورغلی دی او د بيزو د بدن څه پوستکی پکې نښتی دی. سبا چې ترکاڼ راغلی او د بيزو حال يې ليدلی دی، يوه شوی چې بيزو پخپله په ځان کړي دي. نو پانې يې ببرته تک وهلې دي او بيزو خلاصه شوې ده. په دې وخت کې ترکاڼ ويلي دي چې:
(ترکاڼي د بيزو کار نه دی) نو دامتل پاتې شو. اوس اصلي معناترې نه شي اخيستل کېدای، خو لکه مخکې مو چې وويل په مناسب ځای کې د استعارې په ډول ويل کېږي. او دې ته تمثيلي

یا د متل استعاره ویل کېږي. د پښتو ټول متلونه تمثیلي استعارې دي، کله کله له متل نه پرته هم تمثیلي استعاره راتلای شي. لکه:

لـه هغـه بـاغ نـه بـه څنګـه مېوه واخلې
چې تـه بوټــي نـالوې بـل یې اوبـاســي

دا هغه ځای کې ویل کېږي، چې یو، تعمیري او بل تخریبي کارونه کوي. تمثیلي استعاره د متل یا بېلګې نه اخیستل شوې وي.

# مرکب مرسل مجاز

دا هغه جمله یا کلام دی، چې له مشابهت نه پرته د ځینو اړیکو له امله قصداً په اصلي معنا کې نه وي استعمال شوی، خو داسې قرینه او تشبیه وي، چې ا صلي معنا ترې نه شي اخیستل کېدای. لکه: زما په ټاټوبي چې یرغل کوي، زما جنګ ته دې تیار شي.

دلته (جنګ ته دې تیار شي) جمله ده، نو مرکب شو او امر دی، خو مراد ترې خبر دی، چې داسې راځي: (جنګ ته تیارېږي).

# کنایه

کنا یه په لغت کې پټولو او بدلولو ته ویل کېږي، چې د تصریح او ډاګیزې خلاف ده. او په اصطلاح کې هغه لفظ دی، چې اصــلي معنا نه پر ته بلكه معنا ترې اخيســتل كېږي؛ د اصــلي معنااخيســتل هم كېداى شــي، ځكه چې داســې قرينه نه وي چې د اصـلي معنا اخيسـتل منع كړي. او له مجاز سره يې توپير هم همدا وروســتني دوه قيدونه دي، چې د اصــلي معنا اخيســتلو جواز او د داسې قرينې نشـتوالى دى چې د اصـلي معنا اخيسـتلو مانع شـي. لكه يو څوك ووايي: «ماهم څه د كدوانو پاڼې نه دي لوستې».

مطلب دا چې زه هم پوهېږم، خو اصــلي معنا هم اخيســـتل كېداى شي، چې: كتابونه مې لوستي دي او د كدوانو پاڼـــې مې نه دي لوستې.

# د کنایې لومړی وېش

د هغې معنا په اعتبار چې اشاره ورته کېږي، کنایه په درې ډوله ده:

۱- له صفت نه کنایه.
۲- له موصوف نه کنایه.
۳- له نسبت نه کنایه.

# ۱- له صفت نه کنایه

دا هغه کنایه ده چې د یوه شـــي ځانګړتیا (صـــفت) ته پرې اشاره کېږي. لکه: د ځوانۍ، مروت او د سړیتوب څښتن اود مېلمه دوست انسان په هلکه ووایې: (لوی دسترخوان لري).

چې مېلمه دوستۍ او نورو ښو ځانګړتیاو نه کنایه ده، خو اصلي معنا هم اخیستل کېدای شي، چې ریښتیا یې د سترخوان لوی وي.

لوی دســـترخوان ډېرې ډوډۍ او خوړو لپـاره وي او ډېره ډوډۍ او خواړه د ډېرو وګړو لپاره وي.

## ۲- له موصوف نه کنايه

دا هغه کنايه ده، چې موصوف ته پکې اشاره وي.
لکه بخيل انسـان ته چې د خپل مال څوکيدار ووايې، يا قندهار ته د انارو وطن ووايې.

## ۳- له نسبت نه کنايه

دا هغه کنا يه ده، چې نســبت ترې مراد وي. لکه: توره په اصل غوڅه کوي. دا د اوچت نسب له نسبت نه کنا يه ده.

## د کنايې دوهم وېش

له صفت نه کنا يه په دوه ډوله ده:
۱- نږدې (قريبه).
۲- ليرې (بعيده).

## ۱ - نږدې کنايه

دا هغه کنايه ده، چې له يوې معنا نه بلې ته انتقال پکې بې واسطې شوی وي. لکه: جنګېرکې، کنځلمارې او بد اخلاقه ښځې ته چې (ژبه وره) ووايې.

## ۲ - ليرې کنايه

دا هغه کنايه ده، چې له يوې معنا نه بلې ته انتقال پکې په يوه يا ډېرو واســطو ســره وي. لکه: (د ګل نواز د کور ايرې ډېرې دي).

د ايرو ډېر والی د اور پــه ډېروالي دلالـت کوي، د اور ډېروالی د ډېرو خوړو په پخولو دلالت کوي او د ډېرو خوړو پخول په ډېرو مېلمنو پاللو دلالت کوي، نو دا له مېلمه دوستۍ او مېلمه پالنې نه کنايه شوه.

# د کنايې دريم وېش

د لوازمو او سياق په اعتبار کنايه په څلور ډوله ده:

۱- تعريض.

۲- تلويح.

۳- رمز.

۴- ايماء.

## ۱- تعريض

تعريض په لغت کې د ډاګيزې خبرې خلاف ته ويل کېږي، او په اصــطلاح کې هغه کنايه ده، چې يوه خبره وشـــي او د خبرې سياق (چلښت) او ترخ کې بلې معنا او خبرې ته اشاره وشي. لکه د دوه مخي او منافق ســړي په مخکې چاته ووايې: (ســړی هغه دی، چې مخامخ او پسي شا يو ډول وي او يوه خبره کوي).

دې کې هغه دوه مخي منافق ته اشــاره وشــوه، چې ګنې ته سړی نه يې. داتعريض شو. يا لکه: يو سړي نه چا پوښتنه وکړه چې تر ټولو ښه او لايق سړی څوک دی؟.

هغه وويل: يره دځان ستاينه ښه کار نه دی. يعنې زه يم.

بیا یې ترې پوښــتنه وکړه چې تر ټولو بد او خراب ســړی څوک دی؟.

هغه ورته وویل: یره ستا د ښمني هم په سرنه شم اخیستی. مطلب دا شو، چې ته یې.

## ۲ - تلویح

تلویح په لغت کې یو پړک یا څرک ته ویل کېږي. او په اصطلاح کې هغه کنایه ده، چې له تعریض نه پرته واسطې او لوازم ولري. لکه چې د غریب او مســکین متکبر په هکله ووایې: (له خپلې شړۍ سره سمې پښې نه غځوي).

نو له شړۍ سره سمې پښې غځول، په خپلې برخې صبر او له خپل اقتصاد او حیثیت سره سم چلېدل دي. او د تکبر، لویي او بې اندۍ لوازم د دې خلاف دي.

## ۳ - رمز (پټه اشاره)

رمز په لغت کې پټې نغوتې او اشــارې ته ویل کېږي. لکه یو نږدې ته په ورو ځې، سترګې یا شونډې اشاره وکړې.

او په اصطلاح کې هغه کنایه ده، چې له تعریض نه پرته پکې لږې او پټې داسې اشارې وي، چې له هغو څخه داسې برېښي چې کنایه ده، خو مطلب یې څرګند نه وي. لکه: «د سور ګل زړه ډېر سخت دی» دا له بې رحمۍ او سختۍ نه کنایه ده.

## ۴- ایماء (څرګنده اشاره)

ایماء په لغت کې نغوتې او اشارې ته ویل کېږي. او په اصطلاح کې هغه کنایه ده، چې تعریض نه پرته پکې لږې او پټې اشارې وي، خو مطلب یې څرګند وي. لکه:

په نړۍ کې چې د وېش کاروان روان ؤ
د ننګ بار د افغانانو شو په برخه

دا د افغانانو له ننګیالیتوب نه کنایه ده او څرګنده ده.

# محاکات

محاکات په لغت کې یو تر بله کیسو او خبرو کولو ته ویل کېږي او په شعري اصطلاح کې محاکات د شاعر هغه لفظي انځورګری ته ویل کېږي، چې شاعر یو مفهوم، کیفیت او پېښه د شعر په ځواک داسې مصور کړي چې تصویر یې په زړه پورې، راښکونکی او اغېزناک وي، په محاکات کې د تشبیهاتو، استعارو او کنایو استعمال زیات اغېز لري، چې د سالم ذوق او سم استعمال پورې اړه لري، بېلګه یې داده :

عبدالحمید بابا وایي :

لکه سر د پسه په اور غاښونه سپین کا
ماله نن له ډېره غمه خندا راغله

یالکه دا:

دې دنیا سره زه داسې نا بلدیم
لکه لرې کلیوال چې ښار ته لاړ شي

# بديع

# د بديع لغوي معنا

بديع په لغت کې هغه مختَرَع او نوي ته ويل کېږي، چې مخکنی بنسټ او بېلګه ونه لري.

الله تعالی فرمايي:

" قُلْ مَا كُنتُ بِدْعًا مِّنْ الرُّسُلِ " " ورته ووايه: زه پېغمبرانو کې نوی او بې مثاله پېغمبر نه يم "[1]

يعنې له ما مخکې هم پېغمبران تېر شوي دي.

او الله تعالی فرمايي:

" بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ " " الله د اسمانونو او ځمکې بې مثاله پيدا کوونکی دی "[2]

مطلب دا چې الله تعالی دا سې نا ا شنا ا سمانونه او ځمکه پيدا کړي دي چې مخکې يې مثال نه ؤ.

او الله تعالی فرمايي:

---

۱ - سورة الاحقاف: ۹.

۲ - سورة البقرة: ۱۱۷. سورة الانعام: ۱۰۱.

" وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ " " او (نصاراو) ګوښه کېناستل او پيري له ځانه جوړه کړې وه، مونږ پرې نه وه فرض کړې " [۱]

اسلام کې بدعت هغه کار بلل کېږي چې د ثواب او عبادت په شکل کې داسې نوی وي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې نه وي شوی، دا ډول کار په اسلام کې حرام بلل کېږي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: " كُلُّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلاَلَةٌ " [۲]

" دين کې هر نوی کار بدعت دی او هر بدعت بې لارې ده ".

نوبديع په لغت کې نوي اوبې مثاله ته ويل کېږي.

## د بديع اصطلاحي معنا

په اصطلاح کې بديع هغه علم ته ويل کېږي، چې د خبرو ښکلا پرې پېژندل کېږي، خوند، ارزښت او رونق يې زياتېږي او د کلام په مراد لفظي او معنوي دلالت پرې څرګندېږي.

هره خبره دوه ډوله ښکلا لري، چې يوه ذاتي او بله عرضي ده، ذاتي ښکلا د معانيو او بيان په علم څرګندېږي، چې مخکې

۱- سورة الحديد: ۲۷.

۲- بخاري او مسلم.

تېر شول او عرضي (ورپېښه) ښکلا د بديع په علم څرګندېږي، چې مونږ يې په راتلونکيو کرښــواو مخونو کې څېړو. د بديع ښــکلا هغـه وخـت څرګنـدېږي، چې نـابيره او بې تکلفـه وي؛ تکلف او کولمې را ايستل په هر کار کې ښه نه برېښي.
هسې خوشعر، نــثر او هره ليکنه سوچ او اند کولو ته اړتيا لري او داخپله يوډول تکلف دی. خوبې خياله، بې توله اوبې ځايه تکلف په هرکار او بيا په ځانګړې توګه ادب کې ناوړه برېښي.
دا يوخبره بايد له ياده ونه باســو چې له ناوړه صــنعتونوپرته نور دبديع ټول صنعتونه ښـکلاوې ګڼــل کېږي، په دې کې پخوانيو اديبانو ډېر زيار ګاللی دی او مونږ ته يې ډېر څه راپرې ايښي دي.
زمونږ ددې پېر ځينې صــاحبان چې يا پرې نه پوهېږي، يا يې له وســه پوره نه وي او يا يې ذوق ســره ســمون نه خوري، نوبيا دپخوانيو په دې لوړو علمي خد متونو دبطلان کرښــه را کاږي اوباييزه يې ګڼي. خودا ډول خلک ډېر لږ دي او دپام وړ نه دي.
داچې د يوچا ذوق يوځانګړي صــنعت يا صــنعتونو ســره ســمون خوري اوهماغه ليکي اوښــه يې ګڼــــي، داخير دی، حق يې دی اوکومه دنيوکې خبره نه ده. خونور صنعتونه باييزه او نا سم ګڼــل يې هيڅکلـه حق نـه دی، اوداځکـه چې دا پـه نوميـاليواديـبانو اودهغوی په علمي ارزښــتونوملنډې وهل دي. زمونږ ډېرنوميالي اديبان اوس هم دبديع صنعتونوته ډېر ارزښت ورکوي.

# د بديع ډولونه

د بديع ښکلاوې په دوه ډوله دي:
۱- لفظي ښکلاوې.
۲- معنوي ښکلاوې.

## لفظي ښکلاوې (صنايع)

## ۱- جناس

د دوه لفظونو په تلفظ کې يو والي او معنا کې جلا والي ته جناس ويل کېږي؛ تجنيس، تجانس او مجانســه هم بلل کېږي، او داپه دوه ډوله دی :
۱- لفظي جناس.
۲- معنوي جناس.

# د لفظي جناس ډولونه

## ۱ - تام (پوره) جناس

دا هغه جناس دی، چې دوه لفظونه په هر څه کې یو شان وي. لکه د تورو په نوعې، شمېر، جوړښت (حرکاتو او سکناتو) او ترتیب کې. دا بیا په دوه ډوله دی :

**الف**: مُماثل جناس.

**ب**: مُستوفي جناس.

## الف: مُمَاثل جناس

که دواړه لفظونه له یوې نوعې څخه وو لکه: دوه اسمونه، دوه فعلونه او دوه توري، نو دا مماثل جناس بلل کېږي. لکه:

لړ زما په لور نظر کړه
غم په لور رانه جلا کړه

اول (لور) نه مطلب طرف او خواده، او دوهم (لور) نه درېبلو (لور) دی.

## ب: مستوفي جناس

که دوه لفظونه له مختلفو نوعو نه وي، لکه :
اسم او فعل نو دا مستوفي جناس بلل کېږي، لکه: (غالبا) دولت لوانی چې وايي:

کســي هغه کســي چې د يار کســي پرې کســي
ورک شـه هغه کسي، چې بې ياره کسي کسي

دلتـه د دواړو نيم بيتيو اخري (کســـي) فعـل دی چې د (ګوري او ويني) په معنا دی او نور اسمونه دي چې د سترګو کسي دي.

## ۲ - نيمګړی جناس

دوه لفظونه چې ترتيب، نوعې، شمېر او جوړښت نه په يوه يا ډېرو کې سره بدل وي نيمګړی جناس بلل کېږي، خو په دې شرط چې توپير به په يوه توري کې وي . او دا په درې ډوله دی :
۱- مَردوف.
۲- مُکْـتَـنَـفْ.
۳- يوستوی مُطَرّفْ.

# ۱ - مردوف جناس

دا هغه جناس دى چې د یوه لفظ په سر کې له بل نه یو حرف زیات وي.
لکه:

تاچې روږدى کړ خپل ځان په ښــه عادت
نو حــاصـــل دې کړ بې شــکـه ســعـادت

دلته په (سـعادت) کې له (عادت) نه یو توری (سـین) زیات دى چې په سر کې راغلی دی.

# ۲ - مکتنف جناس

دا هغه جناس دى چې د یوه لفظ په منځ کې یو حرف زیات وي لکه:

ســـور پـــه ویـــنـو مـــې کــفـــن
ســـــر مـــې کــېښـــودپـــه وطـــن

دلته د (ســور) او (ســر) تر منځ د (و) په زیاتوالي توپیر راغلی دی چې د (سور) په منځ کې دی.

# ۳- یو ستوی مُطَرّفْ جناس

دا هغه جناس دی چې د یوه لفظ په اخر کې یو حرف زیات وي لکه:

خیـــر اوشـــر مــې کــړ جــلا
شـــرم عــار مــې پــر دښـــمن

دلته د (شر) او (شرم) تر منځ په (م) سره توپیر راغلی دی چې د (شرم) په اخر کې دی.

# مُذیل جناس

دا هغه جناس دی چې په پای کې یې دوه یازیاتو تورو کې اختلاف وي. لکه:

تــل د دوه و مــنــځ کــې خیــر او ســـولــه غــواړه
شـــه مــنــځــګــړی د اخــلاص او دیــانــت

دلته منځ او منځګړي کې مذیل جناس دی.

# غبرګ مطرف جناس

دا هغه جناس دی چې په سـر کې يې دوه يا زياتو تورو کې اختلاف وي .

لکه:

د کابل او ننګرهار          د زابل او قندهار

د ننګرهار او قندهار تر منځ غبرګ مطرف جناس دی.

# مضارع جناس

دا هغه جناس دی چې د دوه لفظونو په پيل، منځ يا پای کې په دوه دا سې تورو کې اختلاف وي چې په مخرج کې سره نږدې وي. لکه:

که څوک نه شـي انسـانانو ته قصـاب
پرې اسـان به شـي د خو بدو حسـاب

دلته د قصاب او حساب تر منځ مضارع جناس دی.

# لاحق جناس

دا هغه جناس دی چې په پیل منځ یا پای کې د دوه لفظونو په دوه داسې تورو کې اختلاف وي چې په مخرج کې سره لیرې وي.
لکه:

تلاوت کوه په مینه د قران
سخاوت کوه هر کله په کثرت

دلته د تلاوت او سخاوت تر منځ لاحق جناس دی.

# محرف جناس

دا هغه جناس دی چې دوه لفظونه په لیکلو کې سره ورته وي او په حرکاتو او سکناتو کې یې توپیر وي.
لکه:

د شکور شکور کې ډوډۍ وي که سوکړک
د مېلمه مخکې یې ږدي په احترام

لومړي (شکور) کې د شین زور دی چې د شخص نوم دی او دوهم (شکور) کې شین ساکن دی او واو اوږد دی، هغه د لوخو یامزرو نه

جوړ پلن لوښي ته ويل کېږي چې ډوډۍ او سوکړکان پکې ايښودل کېږي.

يالکه دا:

چــې حــجــاج حــجــاج رتــل بــې لــه جــرمــونــو
پــنــډ يــې وتــاړه ډېــر پــنــډ لــه گــونــاهــونــو

لومړی حجاج: د (ج) په زور: مشهور ظالم حاکم. دوهم حجاج: د (ج) په پېښ. د حاجي جمع ده.
لومړی پنډ: د (پ) په زور: پېټی، بار. دوهم پنډ: د (پ) په زورکي: لوی، دروند، غټ.

# مُصَحَّفُ جناس

دا هغه جناس دی چې دوه لفظونه داسې سره ورته وي چې که نقطې (ټکي) ترې ليرې کړې هيڅ توپير يې نه کېږي او که ټکي ورته وي نو توپير يې ښکاري. لکه:

ځـنـګـه انصـــاف او عـدالـت بـه وي دا
چـې چـرتـه شــروي زمـا ســرتـه راځـي

د شر او سر تر منځ په ټکو کې توپیر دی. که له (شر) نه ټکي لیرې شي، نو (سر) به شي او یاد (سر) سین باندې درې ټکي وکړې، نو (شر) به شي.

## مرکب جناس

دا هغه جناس دی چې دوه لفظونه سره ورته وي خو یو مفرد وي او بل مرکب. او دا په درې ډوله دی:

۱- مرفو.

۲- مقرون.

۳- مفروق.

## ۱- مرفو جناس

دا هغه جناس دی چې یوې خواته مرکب وي خو یو ځای وي او بلې خواته مفرد وي. لکه:

ارومــــرو، کــــوه کــــوم کــــا
لــه ورور ســــره، اوســــه هــمــکــار

دلته د (کوم کار) او (همکار) تر منځ مرفو جناس دی.

# ۲ - مقرون جناس

دا هغه جناس دی چې دواړه خواوې په لیکلو او تلفظ کې سره یو شان او په معنا کې جلا وي. لکه:

چې په توره او ادب یې کړو خوشحال
ننګیالی ؤ توریالی ختک خوشحال

دلته لومړي (خوشحال) نه مطلب خوښ او دوهم خوشحال ختک دی.

یالکه دا:

چې په عین کې مې عین ولیده په عین
رانه عین باندې راکوږ شوم لکه عین

لومړی عین: چینه. دوهم عین: دلمرسترګه. دریم عین: سترګه. څلورم عین: چینه. پنځم عین: توری (حرف).

یالکه دا:

کسي مې روښان سي د کسي تاریخ چې کسي
ورکه بې کسي سي پښتانه چې ترې خپاره سي

لومړی کسي: د سترګو کسي. دوهم کسي (د سین په خج): په افغانستان کې یو غر دی چې د ببړ نیکه اولادونه ترې راخپاره شوي دي. دریم کسي: (د کاف په خج): ګوري، ویني.

# ۳- مفروق جناس

دا هغه جناس دی چې دواړه خواوې په تلفظ کې ســره یو شان او په لیکلو کې جلا وي. لکه :

مــه پــاتــې کــیــږه ځــه لا
لارې تـــه ور کــــړه ځـــلا

دلته د (ځه لا) او د (ځلا) تر منځ مفروق جناس دی.

# قلب یا مقلوب جناس

دا هغه جناس دی چې توري یې یو شـــان وي خو د تورو ترتیب سره بدل وي.
او دا په درې ډوله دی :
۱- چپه (نسکور).
۲- رداوبدل (تېروبېر).
۳- مستوي (برابر).

## ۱- چپه (نسکور) جناس

دا هغه مقلوب جناس دی چې د یوې خوا لفظ پوره سـرچپه کړې نو د بلې خوا لفظ ترې جوړېږي. لکه:

ای وطــنــه تــا ضـــرور ابــادوم
پـټ پـه زړه کې ســتــا د مینې ټـپ لرم

(پټ) چې سـرچپه کړې (ټپ) شـو چې زخم ته ویل کېږي. په دې کې دا سې هم کېدی شي چې یو بیت یا یوه مسره ټوله سرچپه کړې هم معنا ورکوي.

## ۲- رد او بدل (تېروبېر) جناس

داهغه مقلوب جناس دی چې د دوه لفظونو توري په نوعې او شمېر کې سره برابر وي خو په ترتیب کې تېر و بېر وي. لکه:

چې په راتګ مې ســتا لېمه درانده شــول
ســتــا د ډوډۍ مېلــه مې نــه ده پــه کــار

(لېمه) او (مېله) په تورو کې سره یو شان او په ترتیب کې بدل دي.

## ۳- مستوي (برابر) جناس

دا هغه مقلوب جناس دی چې یو لفظ له دواړو خواو نه یو شان لوستل کېږي، که له ښي خوا نه ولوستل شي او که له ګینې خوانه ولوستل شي یو ډول وي. لکه:

ننګ او غیرت مې لاتت شوي نه دي
د وطن درد مې زړه کې څړیکې وهي

په دې شعر کې (تت) او (درد) له دواړو خواو نه یو شان لوستل کېږي. دا مستوي جناس دی او دا ډول جناس تر ټولو ځواکمن بلل کېږي.

## ۲- تصحیف

تصحیف دې ته ویل کېږي چې دوه یا ډېر لفظونه سره داسې ورته وي چې ټکي ترې لیرې کړې نو یو ډول لیکل کېږي. لکه:

سور او شور، یا: توره، بوره، نوره.
یا: سکور، شکور، منیر، منبر، شپه، شنه، شته.

## ۳- سجعه

سجعه د دوه فاصلو یووالي ته ویل کیږي، اوفاصله په نثر کې داسې ده لکه په شعر کې قافیه. سجعه زیاته په نثر کې وي، د شعر په حشوې کې کله کله راځي. سجعه د دوه فقرو د اخري لفظونو همغږۍ ته ویل کیږي. او داپه درې ډوله ده.

۱- مُطرف.
۲- مُرَصّعْ.
۳- مُتوازي.

## مطرفه سجعه

داهغه سجعه ده چې دواړه فاصلې په وزن کې مختلفې وي او په قافیې کې سره برابرې وي. لکه:

افغانستان نه د یوه شخص د پلار دی او نه د چا ځانګړی ابتکاردی. بلکې داد ټولو افغانانو شریک دیار دی.

دلته (پلار) (ابتکار) او (د یار) په وزن کې مختلف دي او قافیې کې سره یو دي.

## مُرَصّعَه سجعه

دا هغه سجعه ده چې د دوه یا ډېرو فقرو لفظونه په وزن او قافیې کې یو شان وي.

لکه: سوله او یورنګي ثواب دی. فساد او دوه رنګي عذاب دی. دلته (ثواب) او (عذاب) په یو وزن او یوې قافیې دي.

## متوازي سجعه

دا هغه سجعه ده چې دوه یا ډېرې فقرې په فاصلو کې یو شان وي او مخکنیو لفظونو کې توپیر ولري، لکه د سلیمان ماکو د تذکرة الاولیاء دا عبارت:

وایم حمد او سپاس د لوی خاوند او درود پر محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم چې بادار د کونینو، او رحمت د ثقلینو..... په ویاله داغستان او سېږم، او په دې مځکو پایېږم..... مراقد د اولیاو او واصلینو مې پلټل او په هر لوري مې کاملان موندل[1].

---

۱- تذکرة الاولالیاء د سلیمان ماکو: ۱.

# ۴- ازدواج (جوړه)

د دوه جوختو او ګاونډيو لفظونو ور ته والی ازدواج بلل کېږي. لکه: مخې شمخې لري.
دلته (مخې) او (شــمخې) ســره ورته دي په (شــمخو) کې د (شــين) توري زيات دی، که شــين وغورځېږي نو دواړه کټ مټ او يوشی کېږي او که (شين) وي نو سره ورته او جوخت دي.

# ۵- تشريع (سپړل او اوبدل)

تشريع دې ته ويل کېږي چې په شعر کې دوه ، درې يا ډېرې قافيې وي، که يوه يا دوه قافيې له شعر نه وغورځېږي يا سرترپا يه په يومنظم ډول تېروبېر شي نو هم شعر ته کوم تاوان نه پېښېږي او برابر راځي. لکه دا لاندې شــعر چې په درې ډوله ســپړل کېدای او اوبدل کېدای شي :

(۱) څـه نـاوريـن زمـونږ پـه کـور دی
تـــل ژړا د يـتـــــيـــــمانـــو

د غليم راته پېغور دی
بر ملا د غدارانو
پورې شوی په مونږ اور دی
هويدا د اجيرانو
ولې دومره خاموشي ده
په ناتار، د نړيوالو
که زمونږه بې وسي ده
انتظار د ښه احوالو
تپل شوی په مونږ جنګ دی
ناروا خپلو منځو کې
اتفاق راشخه رنګ دی
شو پنا په کړاوو کې
د دښمن راته نيرنګ دی
شا په شا په مرکو کې
اصالت ته مو خطر دی
د اغيارو په لمسون
دې ملت ته مو ضرر دی
د خون خوارو په شبخون

له دې شعر نه که وروستی قافيه لېرې کړو نو شعر بيا هم برابر راځي او داسې يې لو لو:

(۲)- څه ناورین زمونږ په کور دی تل ژړا
د غلیم راته پېغور دی بر ملا
پورې شوی په مونږ اور دی هویدا
ولې دومره خاموشي ده په ناتار
که زمونږه بې وسي ده انتظار
تېل شوی په مونږ جنګ دې ناروا
اتفاق راڅخه ړنګ دی شو پنا
د دښمن راته نیرنګ دی شا په شا
اصالت ته مو خطر دی د اغیارو
دې ملت ته مو ضرر دی د خونخوارو

اوکه وروستۍ دواړه قافیې ور څخه وغورځوو بیا هم شعر جوړ دی او داسې یې لولو:

(۳)- څه ناورین زمونږ په کور دی
د غلیم راته پېغور دی
پورې شوی په مونږ اور دی
ولې دومره خاموشي ده
که زمونږه بې وسي ده
تېل شوی په مونږ جنګ دی
اتفاق راڅخه ړنګ دی
ددښمن راته نیر نګ دی

اصـــالــت تـــه مـــو خـــطـــر دی
دې مـــلـــت تـــه مـــو ضـــــرر دی

د تشــریع صــنعت له مامخکې اوددې کرښــو ترلیکلو پښــتو کې هیڅ انه دی لیکلی؛ ځینو ښاغلیو هڅه کړې وه خو بیا یې ویلي وو چې: انګورتروه دي. مادوه شــعرونه نور هم د تشــریع په صــنعت لیکلي دی چې زمونږ د ډیوان: «اندونه انځورونه» کې شــته. یو یې په شــپږ ډوله اوبل یې د ډیوان کې په اتیا ډوله لیکل شــوی او څه له پاسه درې زره ډوله باندې په داسې منظم ډول سپړل کېږي او اوبدل کېږي چې په لومړي بیت کې په کوم ترتیب اوتنســیق بدل شــي ترپایه په هماغه ترتیب روان وي. الله تعالی دې وکړي چې زمونږ نور شاعران یې له ماښه اوپه ډېرو ډولونو ولیکي.

# ۶- ترافق (همزولي بیتونه)

ترافق دې ته ویل کېږي چې دوه یا ډېر داســې بیتونه راوړل شــي چې که نیم بیتي یې مخکې وروســته شــي هیڅ تاوان نه پېښوي، ټول یو شان لوستل کېږي او شعر برابر راځي.
بېلګه یې داده
:

د بدخوي وي هر يو کار د حرامي
بې شرمي وي هر کردار د حرامي
شرارت وي په د يار د حرامي
دوه مخي وي تل روزګار د حرامي
د ټګۍ وي هر اقرار د حرامي
په درواغو وي ټينګار د حرامي
بې حيابې ادب چار د حرامي
سترګې ځيرې تر حِتار د حرامي[1]
دا ګرد عمر وي دا غدار د حرامي
وي ناوړه ابتکار د حرامي

# ۷ - موازنه (پرتليز تول)

د دوه فاصلو په وزن کې يووالی او په قافيو کې توپير موازنه بلل کېږي. لکه: اسلام ومنئ، احسان مه هېروئ.
دلته (اسلام) او (احسان) په وزن کې يو شان دي خو په قافيه کې بدل دي.

---

۱- حِتار: د مقعد کړۍ.

# ۸ - ترصیع

د وزن یووالی او د وروســتيـ برخې یووالی یا نږدې والی ترصــیع بلل کېږي. لکه: لوګري کښــتونه ربېي او ملګري حســدونه ربېي.

دلته: (لوګري) او (ملګري) کې ؛ (کښتونه) او (حسدونه) کې ترصیع ده.

# ۹ - لزوم ما لا یلزم

لزوم مالایلزم (د هغه څه لازم ګڼل چې لا زم نه وي)، دې ته ویل کېږي چې په شــعر یا نثر کې لیکوال په ځان داســې څه لازم وګڼي چې د پر اړین نــه وي، خو ښــکلا ګڼـل کېږي. لکـه ځینې د قافیې پر (روي) توري سربېره نورهم یو شان راوړي، ځېني داسې شــعر وایي چې هر بیت په کوم توري یاکلمې پېیل شــوی وي په هماغه توري یاکلمې ختمېږي، ځینې داسې شعر وایي چې یو بیت په کوم توري یاکلمې ختم شــي د بل بیت په هماغه توري یاکلمې پیل کېږي . یا داسې نور چې د ځینو بېلګې یې دادي:

# ۱۰- دوه اړخيز

دا هغه صنعت دی چې د بيت پيل او پای په يوه توري وي. لکه:

تاچې روږدی کړ خپل ځان په ښه عادت
نو حاصل دی کړ بې شکه سعادت
تل د دوه و منځ کې خير او سوله غواړه
شه منځګړی د اخلاص او ديانت
تلاوت کوه په مينه د قران
سخاوت کوه هر کله په کثرت

دلته د هر بيت په پيل او پای کې د (ت) توری دی.

ددې بل ډول دادی چې دلومړی مسرې اخرکې مسره په کومې قافيې يا کلمې ختمه شوې وي، دبلې مسرې په سرکې په هماغه قافيې يا کلمې پيل کېږي . بېلګه يې داده :

احمقانو باندې مه کړه انتخاب
انتخاب د احمقانو وي سراب [1]
سراب نه لري وجود په حقيقت کې
حقيقت کې هر څه وي په خپل حساب

---

[1] _ سراب: شګوګل. د پېريانو تنور.

حساب وکړه په هر کار کې په انصاف
انصاف هغه چې حجت وي په کتاب
کتاب واخله او قلم سره يې مل کړه
مل کړه دواړو سره ښکلی انقلاب
انقلاب د معرفت او علم بويه
علم بويه هرې ستونزې ته ځواب
ځواب ووايه له فکره له دليله
له دليله کله مه کړه انسحاب[1]
انسحاب له ګوناهونو څخه وکړه
وکړه دوسته هر عمل په خپل نصاب

# ۱۱- واز

کله شاعر دا التزام کوي چې په ټول شعر کې شفوي (د شونډو) توري نه راوړي، چې مونږ يې (واز) بولو. بېلګه يې داده:

هغه چاچې کړی کار دعدالت
تل يادېږي د هغه دا لياقت

---

[1]_ انسحاب: شاته تلل، وروسته کېدل.

عدل ښه دی له هرچا سره چې کړه شي
د عادل عدل ګانه شي د رايت
چې له عدل نه انکار کړي انسان نه دی
عدل هرکله دی ښه انسانيت
سياست کې عدالت ښه سعادت دی
عادل هر کله لايق د سيادت
هر قاضي چې عدل نه کړي غټ جاهل دی
عدالت کې څرګندېږي ديانت
عدل هر چار کې هر چالره ښادي ده
عدل دی ديانتدار سره زينت

# ۱۲- لغړ (غير منقوطه)

کله شاعر دا التزام کوي چې ټول شعر کې د ټکو والا توري نه راوړي او مونږ يې په لغړ نوموو. لکه:

علم حلم او عمل سره همکار کړه
حسد مه کړه هر مهال د عدل کار کړه

وهر ډول هم الم لره دواده
د اسلام عمل هر کار او هر کردار کړه
د الله او د رسول لاره ده سمه
کمراهۍ لره همدا همدم سهار کړه

یا:

سم کره کردار، مکړه وسواس
وکړه حوار، د لوړ احساس
عدل کوه، د هر مهال
مه کړه دعوه، د هر کمال

# ۱۳- قبیح او ملیح (برګ)

قبیح او ملیح هغه شعر دی چې یو نیم بیتی یې ډېر ناوړه او د کنځلو په څېر وي، او بل نیم بیتی دومره ښه وي چې د لومړي نیم بیتي معنا هم ورسره سمه شي، بېلګه یې داده:

ستا له مور سره یې وکړم
ښه نېکي او احسانونه

نورې ډېرې بېلګې لري چې لیکل یې مناسب نه ګڼم.

# ۱۴- پوخلی (منقوطه)

هغه شــعر چې ټول توري يې د ټکو والا وي، (پوخلی) بلل کېږي لکه :

جــبــيــن چــې ټــيــټ شــي
غــږ يــې ټــيــټــېــږي
پښــې يــې شــي شــخــې
غــېــږ يــې تشــېــږي

يا لکه:

چې بخت يې تـت شــي ښــې چينې ټپې شــي
نغښــتې يې نخښــې پښــتنې پټې شــي

# ۱۵- پاسنی (فوقا نيه)

هغه شـعرچې د لاندې ټکو والا توري پکې نه وي او ټول يا اکثر يې د پاســنيو ټکووالا توري وي، (فو قانيه) بلل کېږي چې مونږ يې (پاسنی) بولو.

لکه:

داڅه رنګه ناتار شو
ژړا مو انتظار شو
د امن لاره ورکه
ژوندون مو ټول انکار شو
سودا مو ګډه وډه
د ظلم مو روزګار شو
دردونه کړاوونه
خطارا څخه وار شو

## ۱۶- لاندینی (تحتا نیه)

هغه شعر چې د پاسه ټکو والا توري ونه لري او ټول یا اکثر توري یې د لاندینیو ټکو والا وي، (تحتانیه) بلل کېږي چې مونږ یې (لاندینی) بولو.

لکه:

داولې یو بې وسه
دا ولې یو برباد

بې سوچه بې باکي ده
هېر کړي مو امجاد
له کوره هم بې کوره
یو لیرې له هېواد
احساس راسره کم دی
جاهل مودی اولاد

# ۱۷- تضمین

په شـعر کې د بل شـاعر کلام راوړل، حواله ورکول او ورته اشـاره کول تضمین بلل کېږي. لکه:

چې خوشحال یې وه په ننګ تړلې توره
زه هماغه ننګیالی پښتون افغان یم

په دې شعر کې د خوشحال خان خټک دې شعر ته اشاره ده چې:

دافغان په ننګ مې وتړله توره
ننګیالی د زمانې خوشحال خټک یم

# ۱۸ - ذوالقافیتین (دوه قافیــز)

هغه شعر چې دوه قافيې ولري ذوالقافيتين (دوه قافيـــيز) بلل کېږي.

لکه:

د سيـــلانـــو پـــه مـــخ پـــورې د غـــدار در
غـلامـۍ نه به تل تيـتې وي شر مـسار سر
د خوښـۍ او سـرلوړۍ ژوند يې نصـيب وي
لــه فــساد څخه چــې ولــري کنــار نــر
هـيـڅ يـــې بــولــه پـه تــولـنـه کې مـنفور دی
چـــاچـــې وګـــتـــل پـــه ظـــلـــم او ازار زر
د هغه بـــــزګـر مېوې غلې وي د پـــــرې
چې پـه ځـمکـه بـانـدې کـړي د ابـتـکارکـر
د مـظـلـوم او د يـتـيم پـه مـخ چـې بـنـد وي
دی ضــــرور د مــــاتــــولـــو ســــزاوار ور
کــه دپــت عــزت ســاتــل غــواړې نومه کړه
کـېـنـاسـتـل دحـــاکـمـــانـــوپـــه در بــار بــر
بـــې تــمـيـزه بـې تــوپـيــره چـې روان وي
ســوځـوي يــې خــامــخــا دانــتــحــار حــر

چې د ژوند مو خه يې کور کالي ډوډۍ وي
پـه موګي کتې وښــو کړي ا فتخـار خر

## ۱۹ - ذوالقوافي (باراني)

ذوالقوافي هغه شــعر دی چې له دوه و څخه زياتې قافيې ولري . مونږ يې ځکه (باراني) بولو چې د قافيو باران پکښــې وي. او که د قافيو تر منځ رديفونه هم ولري نو بيا (ذوالقوافي مع الحواجب) بلل کېږي. بېلګه يې دا ده:

چاد شــرم ورکې لـه ليلانـه جلبـاب لرې کړ
چاد ژوند سـفر کې له حيانه شـباب لرې کړ

ورک شـو خو شـامندونه اثر يې په خبرو کې
دې ملا منبر کې له وينا نه عتاب لرې کړ

هله رامعلوم شوې چې احساس کې د غدغه لرې
تـاچې پـه شــجر کې لـه بورانـه ګلاب لرې کړ

څرک د پيغمبر باندې نړۍ تېوله روښانه شوه
رب د مکې غر کې له حِرانه تناب لـــــرې کړ

هجر کې يو کيف دی چې په وصل کې يې نه وينم
ما چې خپل نظر کې له ښکلا نه حجاب لرې کړ

په دې شعر کې درې قافيې دي چې د اولې مصراعې د (ور)، (ليلا) او (جلباب) سره يو شان دي.

د ذوالقوافي بل ډول داسې وي چې يوه قافيه په اخر کې درې ځل غبرګه شوې وي لکه:

نه منل مود ملا ملا ملا
شو هر څه راته بلا بلا بلا
عداوت او شقات مو شو نصيب
تولې مينې شوې جلا جلا جلا
بې تدبيره حرکت مو چې کاوه
اوس پيدا شوله خلا خلا خلا
رابيدار شئ چې شو تېر هغه شو هېر
رائځئ اوس وکړو سلا سلا سلا
وران ټاټوبی ښه ودان کړو په همت
په خدمت يې کړو ځلا ځلا ځلا
ددې نن کار همدانن کول په کار دي
تر څو وايو به سبا سبا سبا
دوسته مينه اوخندا موکه ونه کړه
شو اخته به په ژړا ژړا ژړا

دذوالقوافي له جملې نه دالاندې شعرهم دی چې
د تشریع په صنعت لیکل شوی دی اوزمونږ د دیوان:
(اندونه انځورونه) کې شته :

په فطرت کې زمایون دی طوفاني یم
په خلقت کې مې پاځون دی هیجاني یم
لوړ وقار مې د عصمت دی په مظهر کې
پت عفت زما مصئون دی یقیني یم
انحصار مې په حکمت دی په محضر کې
قضاوت زما موزون دی برهاني یم
هرګوزار مې د جرات دی په سنګر کې
شهامت زما مقرون دی میداني یم
هر شعار مې د نخوت دی په ډګر کې
ننګ غیرت زما مضمون دی عیاني یم
انتصار مې د عبرت دی په تکر کې
عزیمت مې د لټون دی کارواني یم
هر تکرار مې د عزت دی په شرر کې
سیاست زما مرهون دی جهاني یم

ښـه اظـهـار مې حـقـيـقـت دى پـه نظر کې
هــدايت زمـا سـمـون دى ايــمـانــي يــم
هـر قـرار مې صداقـت دى په ځيگر کې
عــدالت زمــا قــانــون دى قــانـوني يـم
ابـتـکار مې شـهـامـت دى په هـنر کـې
طــهـارت مې سباوون دى نـوراني يــم
اعـتـبـار مـې د هـمـت دى پـه اثـر کـې
د الـفـت زمـا بـدلـون دى فـرقــانــي يــم
هر اخـتـيـار مـې بصيرت دى په منظر کې
د عـظـمـت مې اووښـتـون دى اعلاني يم
افــتــخـار مـې حـريـت دى پـه بـاور کـې
اسـارت کې مې سـکـون دى زنـدانـي يم
هسک دستار مې قناعت دى په مضمر کې
شـــرافـت زمـــا تــړون دى رحـمـانـي يـــم
هــر اصـرار مې حـمـيـت دى په تـټـر کـې
مـحـبـت مې د مـجـنـون دى ارمـانـي يم

هر یو کار مې فراست دی هر مقر کې
د حرمت زما ژوندون دی رباني یم
ننګرهار مې د خلوت دی په محور کې
معرفت زما پښتون دی افغاني یم

## ۲۰ - تکرار (غبرګون)

په هر نیم بیتي ( مسرې ) کې د قافیې غبرګون (تکرار) بلل کېږي.
او ذوالقافیتین سره یې توپیر دادی چې هلته یوائې دوهم نیم بیتي کې قافیه تکرارېږی او دلته په هر نیم بیتي کې.
لکه:

نازولي کې چې نه وي د افتاب تاب
مېره نه دی که پرې راشي د شباب باب
د تقلید پردې په سترګو د جمود مود
قیاسي ابلیس ونه کړ د سجود جود

# ۲۱ - سوال او ځواب

کوم شعر کې چې د دوه تنو مناقشه، مکالمه، مناظره او یو تر بله خبرې وي. سوال او ځواب بلل کېږي. بېلګه یې دا لاندې ده:

## د ډوډۍ او سوکړک مناظره

له ورځو یوه ورځ وه چې خور شوی دسترخوان و — ښــــېرازه او ودان و
ډوډۍ او ســوکړکان پکې پرا ته وو ګېر چاپېره — کیســـه یې نه کړې هېره
نـاڅـاپـه د ډوډۍ او د ســوکړک منـاظره شــوه — عـجیبـه ننداره شــوه

☆☆☆

ډوډۍ ویل ســوکړکه ډېر بې ګټې انډیوال یې — انســا ن ته لوی جنجال یې
ســپور نه تېرېږې هر مهال ملګری د کتغ یې — سوکړکه خوار شې ستغ یې
شــخ پیخ یې په تا ولګېدې خولې د بې وزلانو — وښــکـې د غـریـبـانـو
اوبو تـه ډېر محتـاج یې للمي نـه کېږې جواره — ســتا خونه دې شــي خواره
دښمن د اتفاق یې چې رنګی نه شې نو خوار یې — بـار نـه نیســې بېمـار یې
نـانتـه دې نـازولې ده پـخپلـه کلک لرګی یې — ســوکـړکـه الـنګـی یـې
بزګر درباندې سترې دی ارزان یې په قیمت کې — بدرنګ یې په صــورت کې
خواري دربـانـدې نـه ارزي لا یق یې د وهلو — ســـم ســـم د ډبـولـو

☆☆☆

خبرې ډېرې مه کړه نارینه یمه سـوکړک یم	سـتا سـر وهم څټک یم
نامه دې ښـځینه ده مؤنثه یې ډوډۍ یې	مکـاره یې بـوډۍ یې
نـازکه نـازولې یې زه کلک یمـه اتـل یم	غـریبـو سـره مـل یم
ارزان یمه قېمت کې زه پالمه غریبان هم	بې وزلـه یتیمـان هم
تـه ډېره کبرجنه یې خوراک یې د مـالـدارو	ځـارېـږه لـه جـوارو
کمزورې یې ضـعیف یې نرۍ ډکې دې بدن دی	پوسـتکي دې خیرن دی
نرۍ باد چې راوالوځي لینګي دې بیا رېږېږي	هر لـوري تـه ګـګېـږي
خواري دې نهه میا شتې ده او ډېر دې انتظار دی	ستړیا دې هر یو کار دی



جـواره زه ډوډۍ یـمـه د هـر چـا یـمـه خـوښـه	څرګـنـده مې ده ښـه
نرۍ راتـه مـحتـاجـه ده نعمـت یم بختـور یم	بې شـانـه خونـدور یم
بې خونده یې سـوکړکه انسـانان درڅخه تنګ دي	تل تا سـره په جنګ دي
غـذا دې بې قوتـه ده بزګر دربـانـدې خوار شـو	نـرۍ لـکـه د تـار شـو
چې درې وخته دې وخوري له خوراکه دې بېزار شي	غمونـه دې تکرار شـي
غـذا یـمـه قـوت یـمـه خـوراک د انسـانـانـو	ملا تړ د مـحتـاجـا نو
کـه ټول عمر مې وخوري خوراکي مې نـه تنګېږي	پـه مـا بـانـدې څرېـږي
غـذا د انسـانـانـو یم څـارویـو تـه ونـډه یـم	پـه دې بـانـدې ډاډه یم



ډوډۍ ټوله ضـرر یې مرضـونه درکې ډېر دي	ټـول زهـر او ګـنـډېـر دي

چې تا دي پړسولي په څو ډوله مريضان دي　زاړه دي کـه ځوانان دي
د چا فشار د وينې دی اخته څوک په شکر دی　چې خوري دې درپه در دی
انسان دې تاواني کړ ستا له لاسه خوار و زار دی　هم سترې هم قرضدار دی
پيسې دې ورنه وايستې غنمه کيسه بُر يې　اخته په تَکَبُر يې
څه ستا له لاسه لاړې شي ډاکټر ته څه دارو شي　کورونه يې جارو شي
اخر ورته کفن په غاړه واچوې قاتل يې　غنمه ناقابل يې
په درې مياشتو کې رسمه پاللو کې اسان يم　خواخوږی د دهقان يم

☆☆☆

جواره سيال مې نه يې هسې مه کوه خبرې　له مخې مې شه لرې
بې شمېره مې خواره دي په څو ډوله زه پخېږم　د هر چا زه خوښېږم
تبی د تناره يمه پتيره خمبيره يم　ږسته سپينه او سره يم
يشلې پراته يمه کېکونه يم کلچې يم　شيره يمه ميانچې يم
حلوا او پيکوړه يمه اتوبی تلبينه يم　چوري يمه نينه يم
له دروزومې خولی جوړېږي لوړه د درنو يم　په سر د پښتنو يم
ته ځمکه باندې گرځې ما په سر گرځوي تاج يم　پياوړيو کې رواج يم
پگړی راباندې ووهي او هسکه يې شمله وي　په ما يې فيصله وي

☆☆☆

غنمه هسې مه غږېږه ما سره سم نه يې　زما په قدم نه يې
تبی باندې پخېږمه هم سور د تناره يم　د سمې او د غره يم
لبتی يمه حلوا يمه کباب کې هم گډېږم　په څو ډوله پخېږم
نينې يمه پلی مې سپينې سپينې لکه واورې　په سر دې خړې خاورې

ترســکونې مرورې يمــه هم کلکې متکورې ډوډۍ تــه وايــه کورې
پــاخــه وړې وريتــه وړي هم شــګو کې پخېږم هــم مــالــګــې کــې وريــــــتــــبــــږم

ګونګړي رانــه پخېږي زمــا تېــل هم د خوراک دي قيمته دي او پاک دي
ناروغ چې د شـکرې وي ډاکټر مې ورته ښـايي فشــــار تــه مــې هم ســـــتـــايـــي

☆☆☆

خوراک د حيوا ناتو ښــکلي بوس زما تنه ده د ګــتـمې مــې دانــه ده
پــه ختېو کې ګـډ ېږمــه د لېو لپــاره ښـــه يم هم اوريم هم واښـــه يم
هم ځاله يم د چرګې او هم ســره هم شــېدې يم بز ګر تــه ورنږدې يم
نازکه زما بوســـو کې نقلېږي چې پاســـته دي تک ســپين لکه ماســته دي

وريتېږي زما وړي هم پخېږي چې دورجل شـــم کتنغ يـمه چې دل شـــم
توده هم خوړل کېږمــه ســـره هم خوړل کېږم ډوډۍ پــه نوم يــادېږم
هم ســپوره خوړل کېږمــه کتنغ تــه نــه يم اړ زه کتنغ ســـره هم وړ زه
ته يو ځاى خوړل کېږې بل کې نه، زه نړيوا له د هــر چــا انــډيــوالــه

☆☆☆

انســان دربا ندې ســـتړی دی بې باکه يې غنمه دعــوه دې نــه مــنــمــه
کولمې د انســـانا نو دې خرابې کړې پتيرې کوړ کوړ کوې بــادګيرې
ا تل يـمه ټانټه مې هم واښـــه دي هم کو تک دی لــه ګــتـو ځــخــه ډک دی
هم وړی هم ټانټه او هم ســوکړک زما وســله ده ښــه ســپينه مې غله ده
لــکــاړي د ټــانــټــو مــې د تــنــور لــپــاره اور دی غټ وړي کې مې زور دی
توکه زما خا شاک دی او دا شخولی مې شوره ده د ېګي تــه ښــه تکړه ده

نیم سـر مې د توکې د لوی بو تل لپاره سـر دی لاتیـن تـه بـرابـر دی
مـاشـوم کـرارومـه د ټانـتـو پـه کـمـالـونـو د لـوبـو پـه کـټـونـو

☆☆☆

سـوکړکه چالاکي کوې عیبونه درکې ډېر دي زیـانونـه دې خپـل هېر دي
چنیـاسـکې دې سـوکړک کوي اوره دې زر تــــــرخـــــــــــــېـــــــــږي سـوچه نه پاتې کېږي
اوږده مې ذ خیره ده زه تر ډ ېره پـا تې کېږم خـوږه یـم نـه تـرخـېـږم
انصـاف په تا کې نشـته زما ګټو نه منکر یې سـوکړکـه درغلګر یې
چې کوچو کې هګۍ وي زما پاسـتې د تبۍ وي پـخـکـړي هـم ابـۍ وي
منتو رانـه پخېږي غونزاخي رانـه جوړېږي پـه مینـه خوړل کېږي
ښـوروا کې چې راماته خمبیره شـمه ثرید شـم ړندو سترګو ته دید شم
خـوندونـه وربـخـښـمه زه انسان ته وفادار یم عـزت یـمـه وقـار یـم

☆☆☆

سـتا وربې کې لېشـې دي زما ګل غوندې بمبل دی غـنـمـه تـاکـې چـل دی
مرغۍ دې خوري پټې کې سـسـته پسته دې جامه ده شـــلـتـه دې نـامـه ده
زمـا د وربې ځـنـې لـکـه زلـفـې د لـیـلا دي یـا ځـنـې د مـلا دي
کـه کـانې وي یـا خیرې پښـتورګي تـه دارو یم راباسـم یې جـارو یم
مسـتو کې چې را مات د تناره شـمه لذت شـم پوره یې د حاجت شـم
چې سـوړ د تناره یمه شـومړو سـره تړول خوند یم په مینه مینه شخوند یم
چې مات شمه ښوروا کې د غوا یې ییا کتلمه شـم پالونکې د مېلمه شـم
سـابه که راسـره شـي نو سـوکړک د سبو یار یم انسـان تـه وفـادار یم

☆☆☆

له پاسـه پرې دهقان راغی د دواړو فیصـلې ته سـاتلو د غلې تـه

دهقـان ویـل چې دواړه مې ملګري د پتې دي		د ژرنـدې د وتې دي
ډوډۍ مې دزړه سر دی او سوکړک ورسره سم دی		نه زیات دی او نه کم دی

پښتو کې دا متل دی چې جنګونه په وسله شي		ننګونه په غله شـي
ببګـاه تـه تـاسـو دواړو نـه ګـډلی پخومـه		په مینه به یې خورمه
پـه دواړو کبر نـه کړمـه هر یو زمـا غلـه ده		همدا مې فیصـله ده

# ۲۲ - مربع (څلکوري)

دا هغه دوه بیتونه یا څلورنیم بیتي دي چې که هر نیم بیتی په څلورو کورونو وویشــل شــي، شــپاړس (۱٦) کورونه کېږي .که د دې شپاړسو کورونو هر یوله ښي خوانه ولولې او که له پاسه نه یې د ښکته په لور ولولې یو ډول دوه بیتونه یا څلور مسرې لوستل کېږي.
بېلګه یې داده:

| | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | دچا | په زړه کې | دمینې | ور دی |
| ۲ | په زړه کې | غم دی | جام یې | نسکور دی |
| ۳ | دمینې | جام یې | تش دی | پېغور دی |
| ۴ | اور دی | نسکور دی | پېغور دی | نور دی |

# ۲۳- تلمیع

**په يو شـــعر کې د دوه يا ډېرو ژبو را وړل تلميع بلل کېږي. لکه دې لاندې شـــعر کې چې څلور ژبې: عربي، پښـــتو، فارســـي او اردو استعمال شوې دي:**

اَلاَ يــــامَــنْ يــرِيــدُالــعــزّ راشــــه
مشـــو تـاريـک شـــب روشـــن سـبا شـــه
اگــر خــواهــي شـــوي ذَالــمَـجْـدِ واوره
تــو اپــنــے جـان کــردو مــثـل خـاوره
مــکــن کـبـر و تـمـلـق طـمـعـه لـلـنـاس
و أصـــلــح ســيـرت و صـــورت والـلـبـاس
وَزَيــنُ الــنــاسِ بــِا لاَخـلاَقِ فَـاعـلَـمْ
نو ځـان ښـــايســـتـه کړه پر اخلاقو هردم
د نـنـگ غـيـرت او پـت عـزت فـعـال کـن
حـرام را فَـاجْـتَـنـبْ او هـر حـلال کـن
جو دل جـب چـاهـتـا هے ســـارے مـه کړه
د شــــر فَـاتْرُك د خـيـر افـعـال يـې وکـړه
عَـلَـى الْاِنْسَـــانِ کـرنـا فـرق وتـو پـيـر

چې تو پیر نـه کړي شـــد حیوان و خنزیر
عــبــادت کــر عــفــت هــمــت وفــا کــړه
درون بــاطــن بــهــر ظــاهــر صـــفــا کــړه
پـه پوخ تصــمیم لـه قیـل اوقـال جلا شـــه
دلـــیـــل را فَــاتــّبِــعْ از ضـــال جــلا شـــه
پـه علم و نیـک عمل خپـل انـد ســـوچه کړه
بِـقَـلْـبٍ طَـیِّـبٍ خـپـل ژونـد ســـوچـه کـړه
و تــقــوی اللّٰه د خــپــل ځــان کــړه جـامـه
وَلاَ تُشْــرِكْ د بـــل بـــاللّٰه نـــامـــه
د مســلم دوســت نه فَاسْمَعْ دا نصــیحت
چې هـر یـو کـار کـړه پـر پـاکـۍ بصــیرت

# ۲۴- توشیح

**توشـــیح هغه شــعر ته ویل کېږي چې د بیتونو یاد لومړیو مسرو د سر توري راټول او سره یو ځای کړې نو له هغو نه یو بیت، یوه مسره، کوم نوم او یا جمله جوړه شي. لکه :**

۱

م — مولود چې په مکه کې هو یدا شــو محمد
تیـار و د جهـالـت لـره سـبـا شــو مـحـمـد

۲
ح — حِرا نه راځرګنده شـوه سـپوږمۍ د رحمتونو
تـــرږمۍ د فـســادونـــو تـه رڼـا شــو مـــحــمــد

۳
م — مظلوم کره خوښي شـوه دیتیم اوښکې شوې وچې
ســمون لره، بـد لون لره پیـدا شــو محمد

٤
د — د ظلم غلبې وې د ســتم تورې پردې وې
تـورتـم د ګـمراهۍ تـه رهـنـمـا شـــو مـحـمـد

۵
ر — رحمـت شــو بې توپیره برابر ګردې نړۍ تـه
انســا ن لپـاره زېرى پـه ریښــتیـا شــو محمد

٦
س — ســودونـه وو ظلمونـه وو نړۍ ټولـه بېمـاره
دې ګـردو کـړاوونـو تــه دواشـــو مـحـمـد

۷
و — وروري او هـمـدردي او عـدالـت وو نـړیـدلـي
دې لـوړو ارزښـتـونـو تــه ځـلاشـو مـحـمـد

۸
ل — لمســون ؤ بې باکي وه بې لاري حق تلفي وه

۹

دې ټولو بدرنګيو ته ښکلا شو محمد

۹/ل الفت شو محبت شو لياقت او صداقت شو
بيمارو پرګنو ته مسيحا شو محمد

۱۰/ل له ټولو خطرونو بې پروا عالي جرات ؤ
په بدر او احد کې برملا شو محمد

۱۱/ل لارښود و پيغمبر ؤ همېشه د حق په خوا ؤ
له ټولو بريا ديونه جلا شو محمد

۱۲/ه هلاک به مسلم دوسته مخالف د محمد وي
هر چاله قدوه او مقتدا شو محمد

(صلى الله عليه وسلم)

د دې شعر د هر بيت د اول نيم بيتي د سر توري چې يو ځاى کړې نو (محمد رسول الله) ترې جوړېږي . يا د (غند نه) تر عنوان لاندې شعر وګورئ، هغه هم د توشيح د صنعت په دود ليکل شوى دى.

# د شعر د يو بيت وېش

څرنګه چې راتلونکي ځينې عنوانونه د شعر د بيت وېش پورې اړه لري، نو بايد ويې پېژنو. د شعر هر بيت دوه مسرې (مصراعې) يا نيم بيتي لري چې دواړه د شعر په دود داسې وېشل کېږي:

هر بيت پنځه برخې لري:

۱- صدر.
۲- عروض.
۳- ابتدا.
۴- عجز.
۵- حشو.

۱- **صدر**: د لومړي نيم بيتي لومړۍ برخې ته ويل کېږي.
۲- **عروض**: د لومړي نيم بيتي وروستۍ برخې ته ويل کېږي.
۳- **ابتدا**: د دوهم نيم بيتي لومړۍ برخې ته ويل کېږي.
۴- **عجز**: د دوهم نيم بيتي وروستۍ برخې ته ويل کېږي.
۵- **حشو**: د دواړو نيم بيتيو منځنيو برخو ته ويل کېږي.

لکه:

| ۱- راځئ | چې يو شو افغانانو | ورونو |
|---|---|---|
| صدر | حشو | عروض |
| ۲- وکړو | په مينه افغاني | تفاهم |

ځــیــنــې

| ابتدا | حشو | عجز |
| --- | --- | --- |

ښــا غلي

ددې وېش په مقصــد نه دي پوهېدلي اودا تــــقسـيم يې دڅپو په مساوي وېشـلوکړی دی. خودڅپو په وېش داتـــقسيم ناسم دی . يوخو دڅپو په وېش مســاوي نه شــي وېشــل کېدی، ځکه چې يوه مســره يوولس (۱۱) څپې وي نوڅـــنګه به په درې مســاوي برخو ووېشل شي ؟!.

بله داچې دا وېش بدلولو را بدلولو لپاره دی؛ دې کې پوره کلمه ياجمله بدلېږي اوپه مســاوي وېش کې بيا دیوې کلمې کوم توری اويا توري پاتې کېږي، او نيمه کلمه خونه شي بدلېدی. نوسم وېش يې همدا دی چې دې پاسني جدول کې واضح شو. په لاندې بحثونو او بېلګو کې به دا نوره هم جوته شي.

## ۲۵ - رد العجز

د غبرګون، تجنیس، اشــتقاق او مشــابه اشــتقاق په حیث چې د دوهم نیم بیتي وروســتۍ برخه (عجز) د بیت د نورو څلورو برخو نه په هره یوه کې تکرار شــي (ردالعجز) بلل کېږي او دا په څلور ډوله دی :

۱- رد العجز علی الصدر.

۲- ردالعجز علی العروض.

۳- ردالعجز علی الابتداء.

۴- ردالعجز علی الحشو.

او هر یو یې بیا په څلور ډوله دی :

۱- د غبرګون په ډول.

۲- د تجنیس په ډول.

۳- د اشتقاق په ډول.

۴- د مشابه اشتقاق په ډول.

چې په دې ترتیب د (ردالعجز) ډولونه (۱٦) شــپاړس کېږي او ردالعجز علی الحشــو دواړو نیم بــــیتیو کې کېږي چې څلور ورسره نور زیاتېږي او د ردالعجز ټول ډولونه (۲۰) شلوته رسېږي چې تفصیل یې په دې ډول دی :

## ردالعجز علی الصدر

## (په سینې د لنډې غبرګون)

عجز له عجېزې نه دی او عجیزه لنډې (د ملا لاندینۍ اخري برخې) ته ویل کېږي. او صدر سینې او لومړۍ برخې ته ویل کېږي. په شعري اصطلاح کې عجز او صدر مخکې وپېژندل شول.

رد العجز علی الصدر دې ته ویل کېږي چې د شعر د لومړۍ مصراعې (مسرې) لومړۍ برخه د دوهمې مصراعې وروستۍ برخې سره په لاندې څلورو ډولونو یو شان راشي.

**۱- د غبرګون په ډول لکه:**

ژوندی مړ دی هغه څوک
چې یادنه شي مړ ژوندی

دلته اول ژوندی او دوهم ژوندی په لفظ او معنا کې یو دي او یو د بیت په سر او بل په اخر کې راغلي دي.

**۲- د تجنیس په ډول لکه:**

ډنګر ښه دی نه چاغ شوی په حرام
حرام خوروي همېشه لکه ډنګر

دلته اول ډنګر د خوار په معنا دی او دوهم ډنګر د ځاروي په معنا او یو د بیت په سر او بل په اخر کې راغلي دي.

**۳- د اشتقاق په ډول لکه:**

شرافت په همدردۍ وي دانسان
په ټولنه کې خواخوږۍ وي شریف

دلته شرافت او شریف د یو اشتقاق اړیکې لري خو یو مصدر دی او بل اسم فاعل (صفت مشبه) دی او د بیت په سر او اخر کې راغلي دي.

۴- د مشابه اشتقاق په ډول لکه:

زمانه د هغه چاده
چې وي مخکې څوک زمانه

دلته لومړۍ (زمانه) یوه کلمه ده، چې د وخت په معنا ده. او دوهمه (زمانه) دوه کلمې دی (زما) او (نه). یعني (له ما څخه). دواړه سره ورته دي او یوه په صدر او بله په عجز کې راغلې ده.

## ردالعجز علی العروض
## (په څنډې د لنډې غبرګون)

عجز او عروض مو مخکې وپېژندل او رد العجز علی العروض دې ته ویل کېږي چې د لومړۍ مصراعې وروستۍ برخه د دوهمې مسرې وروستۍ برخې سره په لاندې څلورو ډولونو یو شان وي:

۱- د غبرګون په ډول. لکه:

کېمرو د تصـــور کې تصـــويرونـه جوړوم
نړۍ تـه نن بـدل غونـدې رنګونـه جوړوم

جوړوم په عروض او عجز کې غبرګ شــوي دي . په دې معنا دهر شعر دمطلع رديف ردالعجز على العروض دی .

**٢- د تجنيس په ډول.** لکه:

دجـنـت او د هـغـه مـخـکـې مـوړ ه ده
چې لـه حـرصـــه يـې حـرامـونـه مـوړه ده

دلته د اولې مصـــراعې (موړه) د ځمکې ځګه موړه ده او د دوهمې مصراعې په عجز کې (موړه) د ګېډې درد (پينغ) دی.

**٣- د اشتقاق په ډول.** لکه:

خـپـل پـردی بـه بـرابـر ګـڼـي مـنصـــف
د بـل حق کې بې بـاکي نـه دی انصـــاف

دلته منصـف او انصـاف په اشـتقاق کې سـره شـريک دي او يو په عروض او بل په عجز کې راغلي دي.

**٤- د مشابه اشتقاق په ډول.** لکه:

د هـــرات دي دبـــولان کـــه دخـيـــبـــر
يـويـې ديـن دی يـو مـلـت اويـوخـبـر

دلته خيبر اوخبر يو په عروض او بل په عجز کې راغلي دي او په اشتقاق کې سره ورته ښکاري خو د واړه جلا معناوې لري .

## ردالعجز على الابتداء

## (په پيل د لنډې غبرګون)

مخکې مو عجز او ابتـدا پېژنـدلي دي؛ ردالعجز على الابتدا دې ته ويل کېږي چې د دوهمې مسرې لومړۍ برخه د هغې وروستۍ سره په لاندې څلورو ډولونو يو شان وي :

**۱- د غبرګون په ډول لکه:**

کـنـځـلـمـاره ژبـه وي تـرخـه تـرخـه
خوږه ژبـه پـه هر وخـت کې وي خوږه

دلته په ابتدا او عجز دواړو کې خوږه په يوه لفظ او معنا غبرګه شوې ده.

**۲- د تجنيس په ډول لکه:**

مېړني د ننګ ميدان ته په خوښــۍ ځي
ســرکې ځي هغـه چې ولري افغـان ســر

دلته په ابتدا کې سر د مخکې په معنا دی او په عجز کې د بدن د سر په معنا دی.

**۳- د اشتقاق په ډول لکه:**

لــه دي ډېــرو امــيــرانــو مــې تــوبــه
خــلافــت لــېــاره يــو وي خــلــيــفــه

دلته خلافت او خليفه په اشـتقاق کې سـره شـريک دي. يو په ابتدا او بل په عجز کې راغلی دی.

**۴- د مشابه اشتقاق په ډول لکه:**

خپل وطن چې ورانوې د بل په لمســـه
غلامي دې مبـارک شــــه ای غلیمـه

دلته (غلامي) او (غليمه) په اشـتقاق کې سـره مشـابه ښـکاري او دي جلا.

# رد العجز على الحشو

# (په ډګون د لنډې غبرګون)

عجز او حشــو مو مخکې وپېژندل؛ رد العجزعلى الحشــو دې تــه ويــل کېږي چې دواړو مســرونـه د کومې منځنۍ برخـه د دوهمې وروستۍ سره په لاندې څلورو ډولونو يو شان وي:

**۱- د غبرګون په ډول :**

الف- دا ولې مصراعې د حشوې سره د عجز غبرګون. لکه:

ځوان هغه چې په ازمېښــت کې بريالی شــي
شــکر دا چې بريالی شــوم په ازمېښــت کې

دلته (ازمېښــت کې) جمله د اولې مصــراعې په حشــوې کې د بيت له عجز سره غبرګه شوې ده.

ب- ددوهمې مصراعې له حشوې سره د عجز غبرګون. لکه:

چــې قــدم اخـلـي مــتــيـن پــه ديــانــت
تــل کــوي بــه پــرمــختــګ کــې پــرمــختــګ

دلته (پرمختګ) د دوهمې مصراعې په حشوې او عجز کې سره غبرګ شوي دي.

**۲- د تجنيس په ډول:**

الف: د اولې مصراعې له حشوې سره د عجز تجنيس. لکه:

مېړني توره په لاس میدان ته وځي
کړي د ننګ او د ایمان لپاره توره

دلته په لومړۍ مسرۍ کې توره د اوسپنې توره ده او عجزکې توره د مېړانې، غیرت، اوفتحې په معنا ده.

ب: ددوهمې مصراعې له حشوې سره د عجز تجنیس لکه:

تر هغه به لانړۍ کې، څوک ظالم وي او اظلم
چې دپلار سریي قلم کړي، زوی نه وایې خلي قلم

دلته د دوهمې مصراعې په حشوې کې قلم د غوڅ په معنا دی او په عجز کې د لیکلو قلم دی.

۳- د اشتقاق په ډول:

الف: په اشتقاق کې د اولې مصراعې له حشوې سره د عجز ګډون. لکه:

د ظاهر دین له باطنه سره یو کړه
چې د دې دواړو یووالی دینداري ده

دلته دین او دینداري په اشتقاق کې سره شریک دي او په حشوې او عجز کې یو ځای راغلي دي.

ب: په اشتقاق کې د دوهمې مصراعې د حشوې او عجز ګډون. لکه:

داد پښتو او د اسلام دښمنان
غواړي پښتون نه شي جلا پښتو

دلته (پښتون) او (پښتو) په اشتقاق کې سره ګډ دي او د دوهمې مصراعې په حشوې او عجز کې راغلي دي.

**۴-د مشابه اشتقاق په ډول:**

الف- د اولې مصراعې د حشوې او عجز ګډون. لکه:

مېړانه مو د تورو شوه څرګنده و نړۍ ته
تاتوبی نن ودان کړو په کتاب قلم او تورو

دلته په اولې مصراعې کې له (تورو) نه مطلب د جنګ تورې دي چې په څرګند واو دي او د عجز له (تورو) نه مطلب حروف دي چې په اوږد واو دي. اشتقاق کې سره ورته ښکاري اودي جلا .

ب- د دوهمې مصراعې د حشوې اوعجز ګډون . لکه:

راځئ چې د ورورۍ خبرې ښې وکړو او سپینې
اباده کړو دا مېنه مونږ په سولې او په مینې

دلته د دوهمې مصراعې په حشوې او عجز کې (مېنه) کور دی او (مینه) محبت دی چې دواړه سره ورته ښکاري خو اشتقاق کې سره جلا دي.

# ۲۶- مالا یَسْتَحِیلُ بِالاِنْعِکاس

## (هغه چې نه چپه کېږي)

دا د مقلوب مستوي جناس غوندې دی چې داسې الفاظ راوړل شي چې له ښی او چپې خوا یو ډول لوستل کېږي. لکه:

ننګ او غیرت مې لاتت شوي نه دي
د وطن درد مې زړه کې ځريکې وهي

دلته (تت) او (درد) له ښي او چپ لورنه یو ډول لوستل کېږي.

## ۲۷- مواربه

مواربه دې ته ویل کېږي چې شاعر داسې لفظونه راوړي چې د تورو یا ټکو په کمولو یا زیاتولو معنا بدله کړي او له مؤاخذې (نیوکې) نه بچ شي، یا د اصلاح او یا د بل کوم مقصد لپاره دا کار وکړي. لکه:

ما یو پاړ کی داسې ویلی ؤ:

نشته څه په کور د پښتنو د تکلف په نوم
تش یوه ډالۍ له مینې ډکه ولوله لري
رنګ یې د اخلاص په هر کلي کې خپره ټنډه ده
وس کې یو سوکړک او د ترخو چایو پیاله لري

دلته د اول بــيت د دوهمې مصراعې په سر کې (تش) د (فقط) په معنا راغلی ؤ چې ځينو لوستونکيو ترې اسمي معنا اخيسته چې د (ډک) ضد ده او ځينو د ډالۍ صفت ګڼه، نو له همدې امله يې معنا بدلېده او ښه نه برېښېده، نو ما د (تش) د (ت) او (ش) ټکي وغورځول او (ت) نه مې (ب) جوړه کړه نو (تش) نه (بس) جوړ شو او له مؤاخذې او بدلو، لوستو نه بچ شو. بيا هرچا سم لوسته نو داسې شو:

نشـــته څه په کور د پښــتنو د تکلف په نوم
بـــس يوه ډالۍ له مينې ډکه ولـــــوله لري (ترپايه)

# ۲۸- اِطْرَاد

په شــعر کې د چانوم او د هغه د پلار او نيکه نوم بې تکلفه په ترتيب راوړل اطراد بلل کېږي. لکه:

د ســخـا پـه کـار کې تېز لکـه دريـاب دی
ســالـم زوی د عـبـدالله زوی د ګـلاب دی

# ۲۹ - تسميط (پېـيل)

تسميط دې ته ويل کيږي چې شاعر يو بيت په څلورو برخو ووېشي: درې برخې يوه سجعه او قافيه بله سجعه وي. لکه :

روان په سمه لار، دعلم طــلــبگار، له بدونه بېزار، ريــښتونى مسلمان
حاصل دې شه مراد ،وروري اواتـحاد ،دښمن سره جـهاد ،ځان پوه کړه په قـران

# ۳۰-تجزئه

(تجزئه) په لغت کې بېلولو ته ويل کېږي اوپه اصــطلاح کې دې ته ويل کېږي، چې ديو شعر هره مسره په دوه يا څو برخو ووېشل شي، اوقافيه يواځې ددوهمې مسرې په اخرکې وي.
بېلګه يې داده:

صــبر د ايوب زمـا ، اوښــکې د يعقوب زمـا
پــت لـري عـفـت لـري، وګـوره مـطـلـوب زمـا

ســراســر د عـزم دی، نشــتــه تـردد پـکـې
نغښــتي معـاني پکې، ولولـه مکتوب زمـا

حـد او ســرحـد نـه منم، يو انســـانيـت منم
شرق او غرب مې يو بوله، يو شمال جنوب زما
زه او تـه يوه ختـه، وصـــف د فطرت مو يو
لاس راکړه چې يون کوو، مه پوښته عيوب زما
ســتـا يمـه زمـا يې تـه، منځ کې در يم نـه منو
زه خو ســتا حبيب يمه، ته ښــکلی محبوب زما
تنـــګ لرم غورځنګ لرم، چارې مې جوتې دي
کر لرم فر نـه لرم، نشـــتـه هيڅ هروب زمـا(۱)
ســم د حقيقـت پـه لار، حق ســره ملګری يم
بې داغـه بې عيبـه دی، مـه ګوره معيوب زمـا
دوست او په د ښمن باندې، تور او تهمت نه تړم
ښـــه ډاګيز دريځ لرم، مه ســپړه محجوب زما

# ۳۱ - انسجام اوسهولت (اسان اوبدل)

انسجام يا سهولت د الفاظو او معانيو اسانی او ښه تناسب ته ويل کېږي. لکه د عبدالرحمن بابا دا شعر:

پـه ښـــه خوي لـه بـدخواهـانو بې پروا يم
پــه نـرمـی لـکـه اوبـه د اور ســـزا يـم

---

(۱) _ کر: راګرځېدل، مقابلې ته مخ کېدل. فر او هروب: تېښته.

وهر چاتـه پـه خپـل شـــکـل څرګنـد ېږم
ایـنـې غـونـدې بـې روي وبـې ریـایـم

## ۳۲ - اکـتفاء (بسنه)

(اکتفاء) دې ته ویل کېږي چې شــاعر له یوه بیت نه داســې لفظ وغورځوي چې د بیت له نورو الفاظو او چلښت نه څرګند ېږي او عقل پرې دلالت کوي. لکه:

پـوچ ویـل او ســپـک ویـل احـمـق کـوي
ژبــه هــغــه ژبــه چــې د حــق کــوي

دلته له دوهم نیم بیتي نه د (وینا) کلمه غورځېدلې ده چې په اصــل کې داسې دی:

ژبـه هـغـه ژبـه چـې د حـق کـوي ویـنـا

دشعري ضرورت له امله ــــ چې څېې ۀ برې نه شي ــــ د (وینا) کلمه وغورځېده؛ عقل او چلښـــت په دې دلالت کوي چې دا کلمه حذف شوې ده.

# ۳۳-تلطیف اوتولید (کره زیږون)

تلطیف پـه لغـت کې کره بـاریکی راوړلو او تولیـد زیږولو اوپیداکولو ته ویل کیږي. اوپه اصـــطلاح کې دې ته ویل کیږي چې دوه خبرې په داسې باریکی اوښکلا سره پیوند کړې چې دریمه خبره ترې څرګنده شي.
لکه چې یو کشر له مشر زیات مشهور وي اوکشرنه څوک پو ښتنه وکړي چې دا څوک دی ؟ او هغه د ادب له مخې ووایي: زه دده ورور یا زوی یا وراره یم.

## د اخلاص د سورت کونجي

دې لاندې راتلونکي شــعر باندې د اخلاص د ســـورت کوم توری معلومیږي. طریقه یې دا ده چې یو څوک به دســـورت اخلاص یو حرف په زړه کې ونیسي، ته به ورته د شعر یوه یوه مسره (نیم بیتی) وایې، هغه به وایې چې په دې کې شـته یا نه. د هربیت د هرې مسـرې ګڼه معلومه ده چې د لومړۍ مســـرې (۱) د دوهمې (۲) د دریمې (۴) او د څلورمې (۷) ده. د شـــعر لاندې عبارت لیکل شـــوی دی او د هر حرف ګڼه پکې معلومه ده. که په یوې مســـرې کې ؤ او نورو کې نه ؤ نو د هماغه یوې مســـرې ګڼه (نمبر) وګوره، په لاندې عبارت کې دهماغه نمبر حرف دی. که دوه یا زیاتو مسرو کې حرف ؤ نو د مسرو

نمبرونـه جمع کړه بیـا د مجموعي نمبر دلانـدې جملې پـه تورو کې وګوره هماغه توری دی.

د مثال په توګه: که یوائې په لومړۍ کې ۇ نو (دال) دی، که یوائې په ځلورمې مسرې کې ۇ نو د ځلورمې مسرې نمبر (۷) دی او د جملې اوم حرف (هـــ) ده، که په لومړۍ او دریمې مسـرې کې ۇ نو: (۱ + ۴ = ۵) کېږي او په جملې کې پنځم حرف لام دی........

په همدې ترتیب دي. خو شـعر، دمســرو نمبرې، جمله او د جملې د حروفو نمبرې یادول غواړي او د الف او همزې توپیر کول هم ضــرور دي.

۱ - چې لـقـب د اهـلـیـت یـې خـپـل صــفـت شـــي
۲- نصـــیـحـت ورســره ســم پـه حـقـیـقـت شـــي
۴- کـلـمـات یـې هـم لـه فـعلـه ســره یـو وي
۷- انـصـاف ښـایي انـصـاف وایـي روغ یــې نــیـت شـي

| د | ح | ق | ک | ل | م | ه | ا | ن | ص | ا | ف | و | ي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ٥ | ٦ | ٧ | ٨ | ٩ | ١٠ | ١١ | ١٢ | ١٣ | ١٤ |

# ۲ - معنوي ښکلاوې (صنايع)

## ۱ - توريه

(توريه) مصدر دی، په لغت کې پټولو ته ويل کېږي او په اصطلاح کې توريه دې ته ويل کېږي چې څوک په خبرو کې داسې کلمه راوړي چې دوه معنا وې ولري: يوه نږدې وي او له لفظ نه هم ځرګنده وي خو دا معنا د متکلم مراد نه وي؛ بله معنا لیرې وي او لفظي دلالت يې هم پټ وي، خو د متکلم مراد وي، نو اورېدونکی دا ګومان وکړي چې د متکلم مراد هغه نږدې معنا ده، خو داســې باريکه قرينه وي چې ذهين او تېز اندی په دې پوهېږي چې د متکلم مراد هغه لیرې معنا ده.

## دتوريې ډولونه

توريه په څلور ډوله ده:
۱ - مجرده.
۲ - مرشحه.
۳ - مبــينه.
۴- مهياَه.

# الف- مجرده (لغړه) توریه

دا هغه توریه ده چې یوې خوا (نږدې یا لیرې معنا) ته هم څه قرینه نه وي لکه:

غــمــونــه ډېــر دي هــم دردونــه ډېــر دي
خــو اوســـــني غــمــونــه نــه هــېــرېــږي

دلته غمونه ډېر دي او قرینه یوې خواته هم نشته خو د شاعر د حال، سیاق، سباق او تاریخ نه څرګندېدی شي، چې د مینې یادوي،دوطن او که نور.

# ب- مرشحه (ځواکمنه) توریه

دا هغه توریه ده چې قرینه د نږدې معنا خواته وي خو د متکلم مراد لېرې معنا وي. لکه: نا اشـنا سـړي ته څوک وښـایې چې دا زما ورور دی، دلته ذهن ته د نسـب وروروليٌ راځي، چې نږدې معنا ده خو د متکلم مراد د دین وروروليٌ وي چې لیرې معنا ده.

# ج- مبینه ( څرګنده) توریه

دا هغه توریه ده چې قرینه د لیرې معنا خواته وي او د متکلم مراد هم لیرې معنا وي. لکه:

زمــا دا زړه تــاتــوبــی هــم وګــورئ
لــږ خو یــې وپــوښــــتئ پــرې څــه تــېــرېــږي

دلته د زړه نږدې معنا هغه زړه دی چې د غوښې او په سینه کې دی، خو د شاعر مراد افغانستان دی، ځکه چې افغانستان علامه اقبال د اسیا زړه بللی دی او دا لیرې معنا ده، خو تاتوبی کلمه او د افغانستان اوسنی دردناک حالت هغه قرینې دي چې د ادبي ذوق څښتن پرې پوهېږي چې له زړه نه د شاعر مراد افغانستان دی.

# د - مُهَیّاَه (تیاره) توریه

دا هغه توریه ده چې مخکې یا وروسته ورسره داسې لفظ وي چې توریه ترې برېښي؛ که هغه لفظ وغورځېږي نو توریه نه څرګندېږي.
لکه یو سړی له لیرې ځای نه کند هار ته روان وي او څوک یې وپوښتي چې چېرته ځې؟ هغه وایي: د انارو ښار ته ځم. نو د ښار نږدې معنا نږدې ښار دی، خو د انارو قید داسې قرینه ده چې دا ترې

ثرګندېږي چې د متکلم مراد د کندهار ښار دی، ځکه چې کندهار په انارو شهرت لري.

## ۲ - اِستِخدَام

(اِستخدام) دې ته ویل کېږي چې په خبرو کې داسې لفظ راوړل شي چې دوه معناوې لري، اول ترې یوه معنا واخیستل شي او بیا داسې څه ضمیر، اشاره او قرینه راوړل شي چې دوهمه معنا هم ترې واخیستل شي لکه:

وایي ډنګر یمه څرېږمه نه
وایم پتې ته دې بوځم په تېلو

دلته اول نیم بیتي کې ډنګر د خوار په معنا دی او دوهم کې د طنز په ډول دغه حیوان صفته انسان نه په هماغه اشارې او قرینې ځناور ډنګر اخیستل شوی دی. لکه زمونږ د سیمې دغرونو وګړي چې ډنګر (څاروي) ته وایي.

# ۳- افتنان

(افتنان) دې ته ویل کېږي چې دوه مختلف فنونه سره یو ځای راوړې، لکه مدحه او هجوه، تعزیت او مبارکي، رټنه او شاباسی او داسې نور لکه:

پــه قــربــانــیــو دې رحــمــت وایــمــه
پــه خــیــانــتــونــو دې لــعــنــت وایــمــه

# ۴- استطراد

(استطراد) دې ته ویل کېږي چې متکلم یوه موضوع پیل کړې وي، لــه هغې نــه بلې تــه ووځي، خو د دواړو موضــوع ګـانو تر منځ څـه مناسبت وي. بیا بېرته لومړۍ موضوع ته راوګرځي او خبره پرې پوره کړي. لکه:

مــېــړنــي د جــنــګ مــیــدان تــه پــه خــوښــۍ ځــي
ســـرکــې ځــي هــغــه چــې ولــري افــغــان ســـر
زلــفــې ډول او ســـیــنــګــار د نــجــونــو بــویــه
شـــخ لــه نــنــګــه زیــړ پــه زغــرو وي د ځــوان ســـر.

# ۵ - مقابله

«مقابله» دې ته ویل کېږي چې دوه یا ډېر لفظونه یاد شي بیا د هغو په ترتیب د هغو په عکس او خلاف د مقابلو معناو الفاظ راوړل شي. لکه:

په ریښـــتیـــا او امــانــت کــې مــروت وي
پـــه دروغــو او خـــیـــانــت کـــې رذالــت وي

# ۶ - طِبَاق

«طباق» په لغت کې جوختولو او پیوستولو ته ویل کېږي چې «اِیْهَامُ التضـــاد» هم بلل کېږي. په اصــطلاح کې په یو ځای د دوه مقابلو لفظونو راوړلو ته طباق ویل کېږي. لکه:

کـــه ژړا کـــه مـــو خـــنـــداده
کـــه مـــو دردکـــه مـــو دوا ده
تـــول شـــریـــک دي واړه یـــویـــو
کـــه خـــوښـــي کـــه واویـــلاده

دلته (ژړا او خندا)، (درد او دوا) (خوښـي او واویلا) یو د بل خلاف او مقابل دي.

## ۷ - اِرْصَاد

(ارصـــاد) دې ته و یل کېږي چې له یوې فقرې یا یوې قافیې نه مخکې داســې لفظ راوړل شــي چې وروســتنۍ فقره یا قافیه ترې څرګندېږي خو د مخکنیو فقرو یا قافیو تسلسل به معلوم وي. لکه:

پــه درمــلــو بــه ســـتـون نـه شـــي
چــې نــیــولــی اجــل څــوک وي

په دې شــعر کې مخکې راروانې قافیې: ابخل، غل، احول، ارذل او مل دي، که دا بیت څوک داسې ووایي:

پــه درمــلـوبــه ســـتـون نــه شـــي
چــې نــیــولــی........ څــوک وي

نو مخکې قافیې چې چا ته معلومې وي د دی بیت خالي ځای په (اجل) ډکوي چې له مخکې عبارت نه څرګندېږي.

# ۸ - مراعاة النظير

د (مراعاة النظير) نور نومونه هم شـته لکه: تناسـب، توفيق، ائتلاف، تلفيق او اِيهام التنا سب . مراعات النظير دې ته ويل کېږي چې دوه يا ډېر داسې لفظونه سره يوځای کړې چې تضـاد ، ونه لري بلکې سره ورته وي او يا څه مناسبت سره ولري. لکه:

اوربدل او ليدل، ويل او کول سره توپير لري.

مراعاة النظير داهم دی چې د يو کلام پيل او پای سره ورته وي لکه: مسـلما نان سـره ورونه دي، با يد چې يو تر بله اتفاق، اتحاد ، همدردي او تعاون ولري او دائکه چې د يو دين تابع دي . دې ډول ته (تشابه الاطراف) هم ويل کېږي.

# ۹ - عقلي استدلال

کلامي او عقلي استدلال دې ته ویل کېږي چې په خبرو کې سرېزه کېښودل شي او هغه د پایلې لپاره دا سې غوڅ دلیل شي چې انکار ترې نه شي کېدی. لکه:
د ګردې نړۍ هر یو څیز جلا ځانګړتیاوې لري چې له نورو سره یې توپیر څرګندوي، نــو د دې لپــاره چې یو شی ښه وپېژنو او له نورو سره یې توپیر وکړو، باید ځانګړتیا وې یې مشخصې او وپېژنو.

# ۱۰ - ادماج

ادماج دې ته ویل کېږي چې خبره د یوې معنا لپاره پیل شــوې وي خو په ترڅ کې یې یوه بله معنا پرته وي. لکه:

د اســلام پــر دیــن ګــروهــمــن
زه پښــتــون یــمــه هــوډ مــن
مــال او ســریــه پــرې ښــنــدم
پــرې بــه یــون کــړمــه پــتــمــن

دلته د پخې عقیدې خبره ده او له پښتون څخه د ژبې او غیرت دواړه معنا وې اخیستل کېږي.

# ۱۱- حسن التعليل

حسن التعليل دې ته ويل کېږي چې اديب د مدعا لپاره د هغې معروف او مشهور لامل رانه وړي، بلکې يو بل داسې باريک ادبي لامل راوړي چې د اديب په باريکپوهنې، ذهانت او ذکاوت دلالت کوي. لکه:

په فطرت کې اند په خپله ژبه کېږي
زه به تل د خپلې ژبې ترجمان يم
د قران پوهه په خپله ژبه ښه شي
زه پښتو وته ژباړونکی د قران يم

دلته په خپله ژبه کې فکر کول او قران پوهنه له حسن التعليل څخه دي.

# ۱۲- مشاکله

د مشاکلې ښکلا دې ته ويل کېږي چې د څه ملګرتيا له امله له يوه لفظ سره داسې معنا ياده شي چې په عامو وختونو کې ورسره نه لګېږي. لکه:

و یل یې اختر دې ټوکر راوړه چې جامې وګنډو
ماویل هغه اختر لانشته نن غمونه ګنډو

دلته د غمونو ګنډل په عامو خبرو کې نه ویل کېږي خو د جامو ګنډلو له امله د غم په وخت کې ویل شوي دي.

## ۱۳- تجرید

د تجرید ښکلا دې ته ویل کېږي چې د یو موصوف له صفت نه د مبالغې په توګه د هغه په څېر بل موصوف را اوباسې. لکه یو څوک د ښه دوست د دوستۍ په صفت کې ووایي:
هغه دا سې خوږ، مخلص او همدرد دوست دی چې د هغه د دوستۍ له امله به نور ډېر کره دوستان پیدا کړې.

## ۱۴- لَف او نشر (نغښتل او شیندل)

لَف په لغت کې رانغښتلو ته ویل کېږي او نشر خپرولو او شیندلو ته. او په اصطلاح کې دې ته ویل کېږي چې په خبرو کې اول ګڼ لفظونه راوړل شي، بیا په هماغه شمېر نور داسې لفظونه راوړل

شي چې د مخکنيو هر يو سره د وروستي يوه اړيکه وي. او داپه درې ډوله دی :

الف - مرتب لف او نشر.

ب - غير مرتب لف او نشر.

ج - معکوس لف او نشر.

## الف- مرتب لف او نشر

مرتب لف او نشر دې ته ويل کيږي چې د لومړۍ فقرې د لفظونو په ترتيب د وروستنۍ فقرې لفظونه راوړل شي چې د وروستۍ فقرې لومړی لفظ د لومړۍ فقرې له لومړي لفظ سره مناسبت ولري دوهم د دوهم او تر اخره همدا ترتيب مراعات شوی وي. لکه:

شپه او ورځ د دې لپاره دي چې پکې ارام او کار وکړو.

په لومړۍ فقرې کې شپه او ورځ راوړل شول او په دوهمې کې ارام او کار ياد شول، نو د دوهمې فقرې اول لفظ چې (ارام) دی، د لومړۍ فقري د اول لفظ: (شپې) سره مناسب دی او دوهم لفظ چې (کار) دی، د دوهم لفظ: (ورځ) سره مناسب دی.

يالکه:

نېک خوی، سخا، مينه، ايمانداري او رېښتيا هغه لوړ انساني ارزښتونه دي چې بشري ټولنه جوړ وی.

او بد خوی، بخل، کینه، بدد یانتي او درواغ هغه ناوړه کارونه دي چې بشري ټولنه ړنګوي.
په دې کې هم د اولې فقرې او دوهمې فقرې متناسـبې کلمې یو د بل په ترتیب راغلې دي.

## ب – غیر مرتب لف او نشر

غیر مرتب لف او نشر د مرتب په خلاف دی. یعنې د لومړۍ فقرې د لفظونو په شـمېر د دوهمې فقرې لفظو نه هم وي، خو د لومړۍ په ترتیب نه وي. بلکې ګډوډ وي. لکه مخکنۍ دوهمه بېلګه چې دا سې ووایو:
نیک خوي، سـخا، مینه، ایمانداري او ریښـتیا هغه لوړ انسـاني ارزښتونه دي چې بشرې ټولنه جوړ وي.
او بخل، کینه، درواغ، بد د یانتي او بدخوی هغه ناوړه کارونه دي چې بشـري ټولـنه ړنګوي. د دې دواړو فقرو لفظونـه پـه شـمېر او مناسبت کې په یو کچ دي خو ترتیب کې سره ګډوډ دي.

## ج- معکوس(نسکور) لف او نشر

معکوس په لغت کې سرچپه ته ویل کېږي او په اصطلاح کې هغه لف او نشر دی چې د لومړۍ فقرې لفظونو سره مناسب لفظونه په دوهمې فقرې کې د لومړۍ د ترتیب سرچپه راوړې. لکه مخکنی مثال چې داسې ووایو:

نېک خوي، سخا، مینه، ایمانداري او رېښتیا هغه لوړ انساني ارزښتونه دي چې بشري ټولنه جوړوي.

او درواغ، بدد یانتي، کینه، بخل او بدخوي هغه ناوړه کارونه دي چې بشري ټولنه ړنګوي.

په دې کې د دوهمې فقرې اخري لفظ د لومړۍ فقرې د لومړي لفظ سره مناسب دی اونور ټول په همدې ترتیب سرچپه دي.

## ۱۵- مزاوجه

مزاوجه دې ته ویل کېږي چې دوه داسې فقرې راوړل شي چې یوه شرط او بله جزا وي او په دواړو کې دوه ډوله معنا وې وي، چې

په شـرط کې يوه راشـي نو په جزاء کې په هماغه ترتيب هغه بله معنا راځي. لکه:

که سـتا له سـترګو اوښـکې سـپينې ځاځي
زمـالـه زړه نـه درتـه ويـنـې ځـاځـي

دلته دوه معناوې دي: يوه د اوښــکو څڅېدل او بله د وينې څڅېدل. لومړۍ د شـرط فقري کې اوښـکې وڅڅېدې او دوهمې د جزاء فقرې کې وينې وڅڅېدې.

# ۱۶ - جمع

جمع په لغت کې يو ځای کولو ته ويل کېږي او دبديع په اصــطلاح کې هغه ده چې متکلم ګڼ شيان د يو حکم لاندې راوړي. لکه:
غلا، زنا، چغلي، درواغ، غيبت، کينه او خيانت ټول شـــيطاني کارونه دي.
يا: ورورولي، يووالی، همدردي او ښـــندنه د برياليتوب ضـــمانت ورکوي.

# ۱۷ - تفریق

تفریق په لغت کې جلاکولو ته ویل کېږي اود بدیع په اصطلاح کې دې ته ویل کېږي چې دوه، یو ډول کارونه یا څیزونه وي خو د دواړو حکم جلا جلا وي.

لکه:

هغه دوه سرونه کله برابر دي
چې یو ډک وي له غیرته بل د یوث وي

دواړه سرونه دي خو یو غیرتي دی او بل د یوث دی نو حکمونه یې جلا جلا شول.

# ۱۸ - تقسیم

تقسیم په لغت کې وېش ته ویل کېږي او د بدیع په اصطلاح کې دې ته ویل کېږي چې ځني څیزونه یاد شي بیا په هر یوه باندې خپل مناسب ټاکلي الفاظ ووېشل شي. لکه:

روس او امریکا دواړو ماتې خوړلې ده. روسانو څرګنده مادي ماتې وخوړه او امریکا له معنوي او اخلاقي ماتې سره مخ ده. [۱]

## ۱۹ - تفریق سره جمع

جمع او تفریق دې ته ویل کېږي چې متکلم دوه شیزونو ته یو حکم ورکړي خو لاملونه یې جلا جلا وي. لکه:

ســتا مخ کې هم لمبې دي زما زړه کې هم لمبې دي
هـلـتـه ده ښـــکـلا بلـه او دلـتـه مـیـنـه جـل وهـي

## ۲۰ - جمعې سره تقسیم

جمعې سره تــقسیم دې ته ویل کېږي چې متکلم دوه یا ډېر شیزونه یو حکم لاندې راوړي بیا هغه جمع تـقسیم کړي یا اول تـقسیم وکړي بیا جمع. لکه:

---

۱- دا هغه وخت ویل شــوي وو، چې مادي ماتې یې لانه وه خوړلې اوس خو امریکا مادي ماتې سره هم مخ ده.

زه او تـه یو انســانـان یو، ختمه وینـه مو یوه ده
ته مېښـــین ګرځه بې غمه، زه احســاس نه غم زده یم

# ۲۱ - مغایره

مغایره دې ته ویل کېږي چې یو ځل یې مدحه وکړي او بیا یې ذم (بدي) بیان کړي یا ددې سرچپه وکړي. لکه:

ملا ســتالـه ږیرې جار شــم، د دین لوړه منـاره یې
خو چې دین باندې خوراک کړي، د شیطان ډلې سره یې

# ۲۲ - مبالغه

مبالغه د وصــف په ښــه والي یا بدوالي کې داســې تجاوز ته ویل کېږي چې ډېر لیرې یانه کېدونکی ګڼل کېږي. او دا په درې ډوله ده:

الف - تبلیغ.

ب - اغراق.

ج - غلو.

## الف- تبلیغ

تبلیغ هغې مبالغې ته ویل کېږي چې د ښه یا بد صفت کمیت (زیاتوالی یا کمښت) په عقل یا عادت کې ممکن وي. لکه:

زه یم زمری په دې نړۍ له ما اتل نسته
په هندوستان و پر تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نسته، له مااتل نسته

(پټه خزانه، امیر کروړ)

## ب – اغراق

اغراق هغې مبالغې ته ویل کېږي چې د ښه یا بد صفت کمیت (زیاتوالی یا کمښت)په عقل کې ممکن او عادت کې مستحیل (نه کېدونکی وي).

لکه خوشحال خټک چې وایي:

لاتراوسه یې ماغزه په قرار نه دي
چاچې ماسره وهلی سر په ښنګ دی

## ج – غلو

غلوهغې مبالغې ته ویل کېږي چې د ښه یا بد صفت کمیت (زیاتوالی یا کمښت) په عقل او عادت کې مستحیل (نه کېدونکی) وي.
لکه: خوشحال ختک چې وایي:

د خوشحال سره که کښېني یو څو کاله
دا دغره ختک به واړه شاعران شي

لومړنۍ دواړه (تبلیغ او اغراق) منلې مبالغې بلل کېږي او وروستۍ (غلو) مردوده مبالغه بلل کېږي. خوشعرکې ښکلا ګڼل کېږي، لکه خوشحال چې نه کېدونکی کار د شعر په مټ کېدونکی کړ، نوهمدې مبالغې دهغه شعر ځواکمن کړ.

## ۲۳- د غندنې په رنګ کې ستاینه

(تاکیدالمدح بما یشبه الذم) دې ته ویل کېږي چې د غندنې په رنګ کې د چا ستاینه او لمانځنه وکړې. لکه:

نور یې تول خویونه ښه دي
خو په هر چا نېک ګومان دی

بل یې هر وخت او ناوخته
هر څوک ناست په دسترخوان دی

په دې کې له (خو) نه وروسته دوه کارونه ښه ونه ګڼل شول چې یو نیک ګوماني او بل مېلمه دوستي ده؛ حال داچې دا دواړه لاښه خویونه دي، نو داد غندنې په رنګ کې ستاینه او لمانځنه شوه.

## ۲۴- د ستاینې په رنګ کې غندنه

(تاکید الذم بما یشبه المدح) دې ته ویل کېږي چې د ستاینې په رنګ کې د چا غندنه وکړې. لکه:

ډېر فاضل او همت ناک دی
دستر خوان درته څنډي
په کاسو کې چې څه مومي
خپلې خولې کې یې منډي

# ۲۵ - القول بالموجب

(قول بالموجب) دې ته ویل کېږي چې د چاخبره د هغه د مراد په خلاف حمل کړې، یا څوک یو چاته یاکوم شــي ته څه صــفت ثابت کړي یا په کوم صــفت څه حکم مرتب کړي، اوریدونکی د هغه په هکله هیڅ ونه وایي، خو د هغه صفت ثبوت بل چاته نقل کړي. لکه:

وایــي ســـړی یــم د جــرګــو مــرکــو
وایــم ریښــتــیــا یــې د درواغــو پــیــاکــو

یالکه:

امریکا وایي: مونږ بشردوستان یو.
مونږ وایو: بشر دوستان هغه څوک دي چې د ټولې بشري ټولنې خیر غواړي او د بشر خلاف د سیسې او پلمې نه جوړوي.

# ۲۶- توجيه يا محتمل الضدين

توجيــه دې تــه ويــل کېږي چې داســې يوه خبره وکړې چې دوه مفهومه ترې اخيســتل کېداى شي او دواړه يو د بل ضـد وي. لکه چوکړ (په يوه سترګه ړوند) ته چې ووايې:

الله جل جلاله دې دواړه سترګې سره برابرې کړه.

دا دوه خواوې لري چې چوکړه ســترګه يې روغه شــي اودواړه په روغوالي کې سره برابرې شي، دا يې يوه خواده. چې روغه يې هم چوکړه شــي او دواړه په ړوندوالي کې ســره برابرې شــي دايې بله خواده.

# ۲۷- اِسْتِتْبَاع

(استتباع) دې ته ويل کېږي چې د يو شي داسې وصف وي چې بل پورې يې هم ونښلوې. يا يوشی په دوه ډوله يا دکړې. لکه:

پــه ســترګو مې ليـدلي داســې خلک چې بې لار وي
پردی مال داســې خوري لکه دا مال يې چې د پلار وي

# ۲۸ - سلب او ایجاب

«سلب او ایجاب» دې ته ویل کېږي چې یوه شي ته داسې صفت ثابت کړې چې له ټولو خلکونه یې نفې کړې او د هغه ستاینه یا غندنه پرې وکړې.
ستاینه. لکه:

ټول فضیلتونه چې په تاکې یو ځای شوي دي
نورو کې هیڅ نشته ما چې تاکې کوم لیدلي دي

غندنه. لکه:

چې د بل په مال بخیل وي
له هغه به ابخل څوک وي!؟

# ۲۹ - د حکمت چار

«د حکمت چار» دې ته ویل کېږي چې چا سره خبرې کوې دا سې چار ولوبوې چې هغه یې سوچ هم نه کاوه او هغه داسې چې:
۱ - پوښتنې ته یې ځواب ونه وایې او داسې ځواب ورکړې چې هغه یې پوښتنه نه وي کړې.

لکه یو استاذ راته کیسه کوله چې یو ښکلی شاګرد مې وپوښته چې ستا څو ورونه دي؟ هغه وویل: لویه خورنه لرم. زه د هغه کشر شاګرد ذکاوت او ځواب ته ډېر حیران شوم. ځکه چې ماغوښتل که لویه خور یې وي چې زه یې په نکاح واخلم.

۲- د چا خبره داسې لورته واړوې چې د هغه مراد نه وي او په دې یې پوه کړې چې داسې باید ووایې.

لکه چې ډاکټر نه ناروغ پوښتنه وکړي چې څه خورم؟.

هغه ورته په ځواب کې ووایې: بادي ترشي مه خوره!.

مطلب دا چې د خوراک څیزونه ډېر دي باید د نه خوراک او پرهېز پوښتنه دې کړې وای.

# ۳۰- ابداع

یوې خبرې کې چې د بدیع ډېر ډولونه وي، (ابداع) بلل کېږي. لکه په دې لاندې عبارت کې:

پښتانه یو غېرتي، جنګیالی، توریالی او ننګیالی قوم دی، مېلمه دوستي، ښندنه، دینداري، اسلام دوستي او احسان نه هېرول هغه وصفونه دي چې پښتانه پرې ویاړي، غم، ښادي، سـ....ـوله، جنګ، دوستي او دښمني، مبارکي او تعزیت..... په ټولنیزه توګه او ثابتو بنسټونو کوي، پښتانه په خپل کور کې د دوست او د ښمن یو ډول

احترام کوي. د پښتنو له یوه شخص سره چې چا دوستي وکړه او یا یې ورسره پنا واخیسته، ټول کهول او ټبر یې دوستي کوي او پنا ورکوي. د پښتنو دوستي او د ښمني ښکاره او څرګنده وي، او پټې پلمې او دسیسې نه جوړوي. جرګه د پښتنو د قدر وړ عادت او بنسټ دی چې لویې او وړې شخړې او لانجې پرې پای ته رسوي او حل کوي یې. خو کاشکې چې خپلمنځي دښمنۍ او ضد پکښې نه وای.

پښتانه د یوې خبرې او په خپل تړون او ژمنې کلک ولاړ خلک دي. له دښمن نه تېښته، په شاتپ، د ژمنې ماتول، د چاحیا ته سپک کتل، طمعه او د غیرت خلاف کارونه هغه ناوړه اعمال دي چې پښتانه یې غندي او عیب یې بولي.

په دې جملو کې د بدیع لاندې ډولونه دي چې لوستونکي یې باید د مخکنیو لوستل شویو او راتلونکیو بحثونو په بنسټ را اوباسي:

۱- تقسیم.

۲- جمع.

۳- ترصیع.

۴- مرتب لف او نشر.

۵- قول بالموجب.

٦- مزاوجه.

۷- تجرید.

۸- مراعاة النظیر.

۹- استتباع.

۱۰- انسجام اوسهولت.

۱۱- موازنه.

۱۲- مغايره.

۱۳- عقلي استدلال.

۱۴- طباق.

۱۵- افتنان.

۱٦- مالا يستحيل بالانعكاس.

۱۷- رجوع.

## ۳۱- عکس او بدلون

کله چې مخکې وروسته کړې او وروسته مخکې کړې، عکس بلل کېږي. لکه: د حکيمانو نصيحتونه د نصيحتونو حکيمان دي.

يا لکه: که تا ويل چې زه يم او ماويل چې زه يم نه به ته يې نه به زه يم که ماويل چې ته يې او تا ويل چې ته يې هم به ته يې هم به زه يم.

# ۳۲- رجوع

رجوع په لغت کې راســتنېدلو ته ویل کېږي او د بدیع په اصــطلاح کې: یوه ه خبره کول او بیا د قوي دلیل له امله له هغې نه را ســتنېدل رجوع بلل کېږي. لکه:

ســتا جفا ته چې نظر کړم، په وفا شــمه پښــېمانه
دوفا ښــکلا چې ګورم، ســتا جفا ســره وفا کړم

# ۳۳- سنجیده ټوکه

سـنجیده ټوکه هغه ټوکه ده چې څرګنده ټوکه وي خو په حقیقت کې یې مراد ریښتیا وي.
لکه یو ګوډ یا ړانده ته ووایې: په جنت کې به ګوډان او ړانده نه وي.
دا خو څرګنده ټوکه ده خو حقیقت کې ریښــتیا دي؛ ځکه چې جنت کې به الله تعالی ګوډان او ړانده هم روغ کړي.

# ۳۴- تفریع

تفریع په لغت کې یو شــی د بل فرعې او څانګې جوړولو ته ویل کېږي او د بدیع په اصــطلاح کې دې ته ویل کېږي چې یو شــي لپاره یو حکم ثابت کړي، بیا د څه اړیکو له امله هماغه حکم بل شي ته هم ثابت کړي. لکه:

پــه زړه کې ګرانــه ده ســـتا مینــه ګرانــه
هــم راتــه ګـرانــه ده ســـتا ویــنــه ګـرانــه

# ۳۵- تجاهل العارف (ناګاري)

د رټنې، زیاتې ســتاینې، زیاتې غندنې او تعجب له امله ځان ناګاره کول او داسـې پوښــتنه کول چې پرې پوه وي، تجاهل العارف بلل کېږي. بېلګه يې دا ده[1]:

چې وا یې ښـــه او پــه عمـل کې نشـــتــه
دواعـظ خـولـه کـې پـاتـې څـه اثـر دی

---

۱- ناګاري د معانیو د بحث یو څپرکی هم دی ( ۱۱۵ ) مخ وګورئ.

د خــر د واورې لــه خــوراک ســـره څــه
هــمېشــــه ګـل پــه لــوبــو څــه خــبــر دی

یادا:

پــه غلیم چې غورځنګونــه کړي دا څوک دی!؟
پــه دښـــمن چې تــاړاکونــه کړي دا څوک دی!؟
دا چې ســـريې پــه خپــل لاس کې دی نیولی
شـــپــه او ورځ چې یرغلونــه کړي دا څوک دی!؟

د هــدف پــه لــوري یــون کــړي نــه تــمــېــږي
چې پــه غرو رغو مزلونــه کړي دا څوک دی!؟

# ۳۶- معما یا لُغز (اړ)

لغز او معما دې ته ویل کېږي چې په شعر یا نثر کې یو پټ مطلب نغښـتی وي او هغه حل طلب وي پښــتو کې اړ بلل کېږي، او پاړسي کې ورته چیستا ن وايي. لکه:

یو مرغــه داســـې موجود دی پــه جهــان کې
چــې یــې ذکــر دی راغــلــی پــه قــران کــې

نــه وزر لــري نــه الــوزي هــوا تــه
نــه څــه خوري نــه يې خولــه وازه وي وچــاتــه

په اوبو باندې دا پایي هر ساعت
بې اوبو هیڅ شي ته نه لري حاجت

پاکې صافې اوبه نه څښي که يې ګورې
یا به شنې وي یا به سرې وي یا به تورې

د دنیا په هره ژبه ښه پوهېږي
نه ارام کړي او نه خوب نه ستړی کېږي

مبصر دی په دنیا کړي تبصرې
راته وایه معلومات که ته لرې

په دنیا کې هر یو کار په دې روان دی
په یو ان د هرې ژبې ترجمان دی

که څه پلورې دایې پلوري دبازار دی
که څه اخلې ده سره دي دوکاندار دی

نوي عصر کې جهان ورته محتاج دی
فیلسوف دی د پوهانو د سرتاج دی

نه ژوندی دی نه یې روح سره تماس دی
داد هرچا د فکرونو انعکاس دی

مسلم دوستـــه دا یو دومره لوی نـــعمـــت دی
رب لــه لــوري ډېــرو وړی پــرې عــزت دی

ځینې وخت معما او اړ د تورو د حذف، مخکې کولو او وروسته کولونه جوړېږي. لکه:

ډک خُم د اوبو واړوه یو څاڅکی ترینه توی کړه
مدهوش نه چې هوش لرې کړې دا نوم مې د جانان دی

(خم) چې واړوې (مخ) شــو او څاڅکی د (خ) ټکی دی، نو ټکی چې ترې لرې کړې (مح) شــو او (مدهوش) نه چې (هوش) لرې کړې (مد) پاتې شو نو (مح) سره چې (مد) یو ځای کړې (محمد) شو. (صلی الله علیه وسلم).

ځینې اړونه او معماوې د ابجدو په حســاب جوړېږي. د دې لپاره د ابجدو د تورو قېمتونه یا شمېرې باید وپېژنو.

# د ابجدو حساب او دتورو ابجدي ارزښت

| ابجدي کلمې | توری | ارزښت | توری | ارزښت | توری | ارزښت | توری | ارزښت |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَبْجَدْ | الف | ۱ | ب | ۲ | ج | ۳ | د | ۴ |
| هَوّزْ | هـ | ۵ | و | ٦ | ز | ۷ | | |
| حُطِّیْ | ح | ۸ | ط | ۹ | ی | ۱۰ | | |
| کَلِمَنْ | ک | ۲۰ | ل | ۳۰ | م | ۴۰ | ن | ۵۰ |
| سَعْفَصْ | س | ٦۰ | ع | ۷۰ | ف | ۸۰ | ص | ۹۰ |
| قَرْشَتْ | ق | ۱۰۰ | ر | ۲۰۰ | ش | ۳۰۰ | ت | ۴۰۰ |
| ثَخَـّذْ | ث | ۵۰۰ | خ | ٦۰۰ | ذ | ۷۰۰ | | |
| ضَظَـّغْ | ض | ۸۰۰ | ظ | ۹۰۰ | غ | ۱۰۰۰ | | |

# د ابجدو اړونه

په پښتانیو شاعرانو کې داهم رواج و چې له یوه نوم، تاریخ او یا بل مطلب څخه به یې د ابجدو په حساب معما یا اړجوړ کړ. لکه علي خان یو شعر کې وایي :

معما مې ده داسم اوه سوه
لا یو کم دی که دوه واره ورله لام لا ړ

د علي خان نوم نه د ابجدو په حساب په دې ترتیب (۷٦۱) جوړیږي:

ع = ۷۰
ل = ۳۰
ي = ۱۰
خ = ٦۰۰
الف = ۱
ن = ۵۰

---

۷٦۱

نو اوه سوه (۷۰۰) سره چې د لام شمېر (۳۰) دوه ځل جمع شي (۷٦۰) کیږي. (لا یوکم) نو (۱) چې ورسره جمع شي (۷٦۱) شو.

له دې جملې څخه د میرزا عبدالحنان بارکزي دا شعر هم دی چې معما ته ور ته دی او د ابجدو په حساب دی :

په عددو د ابجد به درته وایم
یو څو شیزه برابر دي په حساب
که کشمش دی که نخود په حساب یو دي[1]
هم بنګي او ملحد یو دي په داباب
د دراز او دبې عقل عدد یو دی[2]
هم کاکل او ګژدم یو مکره عتاب[3]
د عدو او د سګ یو رنګه عدد دی[4]
خواجه سرا او خر سیاه سره تناب[5]
هم صهبا او پیاله مۍ په یوه رنګ دي[6]
قلعه برج هم برابر په دا حساب
په حساب کې دغه لوک اومایه یو دي[7]
هم دغه رنګ برابر سهو حساب[8]

د دې شعر د حل جدول په لاندې ډول دی :

---

۱- کشمش: واړه انګور. نخود. چڼې.
۲- دراز: لوړ، اوږد.
۳- کاکل: د جنکو د تندي وېښتان. ګژدم: لړم.
۴- عدو: دښمن. سګ: سپی.
۵- خواجه سرا: ایجړا (نربشځی). خرسیاه: تور خر.
٦- صهبا: د انګورو شراب. پیاله مۍ: د شرابو پیاله.
۷- لوک: رذیل خلک. مایه: بیر اوښ.
۸- د میرزا عبدالحنان بارکزي دیوان: ۲۳۲- ۲۳۳.

| کشمش | ک ۲۰ | ش ۳۰۰ | م ۴۰ | ش ۳۰۰ | = ۶۶۰ | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نخود | ن ۵۰ | خ ۶۰۰ | و ۶ | د ۴ | = ۶۶۰ | | | |
| بنګي | ب ۲ | ن ۵۰ | ګ ۲۰ | ی ۱۰ | = ۸۲ | | | |
| ملحد | م ۴۰ | ل ۳۰ | ح ۸ | د ۴ | =۸۲ | | | |
| دراز | د ۴ | ر ۲۰۰ | الف ۱ | ز ۷ | | = ۲۱۲ | | |
| بې‌عقل | ب ۲ | ی ۱۰ | ع ۷۰ | ق ۱۰۰ | ل ۳۰ | = ۲۱۲ | | |
| کاکل | ک ۲۰ | الف ۱ | ک ۲۰ | ل ۳۰ | = ۷۱ | | | |
| ګژدم | ګ ۲۰ | ژ ۷ | د ۴ | م ۴۰ | = ۷۱ | | | |
| عدو | ع ۷۰ | د ۴ | و ۶ | = ۸۰ | | | | |
| سګ | س ۶۰ | ګ ۲۰ | | =۸۰ | | | | |
| خواجه سرا | خ ۶۰۰ | و ۶ | الف۱ | ج ۳ | هـ ۵ | س ۶۰ | ر ۲۰۰ | الف ۱ = ۶۷۶ |
| خرسیاه | خ ۶۰۰ | ر ۲۰۰ | س ۶۰ | ی ۱۰ | الف ۱ | هـ ۵ | =۶۷۶ | |
| صهبا | ص ۹۰ | هـ ۵ | ب ۲ | الف ۱ | | | | = ۹۸ |
| پیاله مې | پ ۲ | ي ۱۰ | الف ۱ | ل ۳۰ | هـ ۵ | م ۴۰ | ی ۱۰ | = ۹۸ |
| قلعه | ق ۱۰۰ | ل ۳۰ | ع ۷۰ | هـ ۵ | = ۲۰۵ | | | |
| برج | ب ۲ | ر ۲۰۰ | ج ۳ | | = ۲۰۵ | | | |
| لوک | ل ۳۰ | و ۶ | ک ۲۰ | | = ۵۶ | | | |
| مایه | م ۴۰ | الف ۱ | ی ۱۰ | هـ ۵ | = ۵۶ | | | |
| سهو | س ۶۰ | هـ ۵ | و ۶ | | =۷۱ | | | |
| حساب | ح ۸ | س ۶۰ | الف ۱ | ب ۲ | =۷۱ | | | |

ځینې نور اړونه او لغزونه داسې وي چې د یوه شي ځینې اوصاف په داسې ډول ووایې چې سړی پرې تېر وځي. لکه:

مالیدلې د انګور یوه دانه وه
چې په حجم هندوانې غوندې درنه وه

د انګور هره دانه د هندوانې په اندازه وي خو هغه هندوانه چې ګل په سر تازه راټوکېدلې وي او د انګور د دانې په کچ وي.

ځینې ولسي لغزونه شته چې دوښې یې بولي. بېلګه یې داده:

د ورځې ګرځي ګرځي د شپې راشي یوه پولۍ اغزي په ځان را واړوي.

ځواب یې (سترګې او باڼه) دی.

یادا: د ورځې ګرځي ګرځي د شپې راشي د یوې روپۍ ځای ونیسي.

ځواب یې (امسا) دی.

دې ډول لغزونو یا دوښو ته ټکونه هم ویل کېږي.

# ۳۷ - تلمیح

کومې کیسې، پېښې، شعر یا متل ته اشارې کولو ته تلمیح ویل کېږي لکه:

**د میوند ماتې په یو شــعر فتحه وموند له**
**ملاله پېغله په تاریخ کې له چا نه هېرېږي**

په دې کې د میوند په جنګ کې د ملالې مشــهورې پېښــې ته اشـاره ده.

# ۳۸- تخلص

(تخلص) دې ته ویل کېږي چې له پیل شـوي موضـوع نه بلې خواته ووځې، خو دواړه موضوع ګانې دا سې سره سلېښت او وپېږې چې لوستونکی یا اورېدونکی په وتلو پوه نه شي.
بېلګه یې وروســته راروان (حمد) دی چې له (حمد) نه د اســلام ستاینې ته وتلی دی خوله مخکې سره څرګند پېیل او تړاو لري.

# ۳۹- براعة الاستهلال
## (په زړه پورې پیل)

د یوکتاب، مضمون او شعر په سریزې او مطلب کې داسې باریکې اشـارې کول چې د راتلونکي کتاب، مضـمون او د شـعر محتوا ترې څرګنده شي، (براعة الاستهلال) بلل کېږي؛ (براعة المطلع) او (حُسن الابتداء) هم ورته ویل کېږي.
لکه: (د زړه انځور) د کتاب دا سریزه:

«انسان له نورو ځناورونه دوه ډوله توپیر لري :
۱ - بدني جوړښت.
۲ - معنوي ارزښتونه.
په معنوي توپیرونو کې یو ارزښتناک توپیر دادی چې انسان په خبرو د خپلو غوښتنو څرګند تعبیر کولای شي؛ ژبه د زړه ترجماني او انځور ګري کوي. تعبیرونه، ترجماني او انځور ګري هم سره توپیر لري؛ تر ټولو ښه او اغیزناک تعبیر هغه ښیپلې خبرې دي چې د انسان عواطفو، جذباتو او ولولو ته ټکان ورکړي؛ راویې پاروي او د بدلون او نوښت ښکارندوی شي».
له دې سریزې نه په ډاګه څرګندیږي چې د کتاب راتلونکې موضوع شعر دی .

# ۴۰ - براعة الطلب

## «په زړه پورې غوښتنه»

«براعة الطلب» دې ته ویل کیږي چې شاعر یا متکلم خپله غوښتنه او د زړه خبره په داسې ډول وکړي چې ډاګیزه نه وي خو له باریکو اشارونه څرګندیږي. لکه:

که ته یې نه وایې زه ښه پوهیږم
سترګو دې زړه نه څه پیغام راوړی

يالکه يو څوک له چا نه خپل زوی ته د هغه لور غواړي، په مرکه ورشي او ورته ووايي:

«دوســتي او خپلوي چې څومره زياتېږي هغومره خوند کوي. مونږ ستا سـوله ښـوخويونو څخه ډېر اغيزمن يو، زما زوی عبدالله زلمی شــوی دی، په دولســم ټولګي کې زده کړې کوي، شــکر دی خپلو مسـئوليتونو ته ښــه پاملرنه کوي، زه غواړم چې زمونږ او ســتاســو دوســتي په خپلوۍ بدله شــي او د هغه د راتلونکي ژوند پرېکړه ستاسو تر غاړې کړم».

دې نه دا څرګندېږي چې له مخاطب نه د خپل زوی عبدالله لپاره لور غواړي.

# ۴۱ - براعة المقطع

## «په زړه پورې پای»

«براعة المقطع» چې «حسن الانتهاء» او «حسن الختام» هم بلل کېږي، دې ته ويل کېږي چې د کتاب او مضــمون پای يا د شــعر مقطع کې داسې الفاظ راوړل شـي چې ډېر خواږه، په زړه پورې، د ښـه معنا او ښــکلي طرز درلودونکي او د پـای څرګنـدوونکي وي. لکـه «د زړه انځور» د کتاب دا پای:

داچې مې وکېښ، د زړه انځور
د اند په ځغاسته په نيلي سپور
له ربه غواړم، لاس په دعاء
چې ماته راکړي، توفيق هم نور
چې ورپوره شي، د پښتنو
په مايې پاتې، لاهم دی پور
دامې ارمان دی، دامې هيله
چې راته پاتې نه شي پېغور
مسلم دوست وايي، ماته هر وخت
دا تسلي ده، د زړه تکور

# ۴۲- حاضر ځوابي

حاضر ځوابي يوې نابيره مناسبې خبرې يا يو چاته په ډېرې چالاکۍ او ظريفانه انداز کې مناسب ځواب ورکولو ته ويل کېږي، او دا هغه څوک کولای شي چې ډېر تېز ذهن ولري. بېلګې يې دادي:
ملا غلام الرحمن (جرار) چې په ملا وزر هم مشهور ؤ او د ننګرهار د للمې اوسېدونکی ؤ، چا ورته وويل: دا رښتيا ده چې په للمه کې په لس روبي.... (باد اچول) دي؟. هغه ورته وويل: بده بې پېټې مزدوري ده کوې يې نه؟.

**یالکه:**

**الفت** صاحب څو شاعرانو او ادیبانو سره روان ؤ، یو ځای کې یې دوه خره ولیدل چې یود بل څخ ګراوه، چا وویل: په خرو کې هم الفت شته، الفت ورته وویل: هو لکه زه چې په تاسو کې یم.

**یالکه:**

ماته چا وویل: ابراهیم علیه السلام چې کله پسه حلال کړ غوښه یې چا وخوړه؟

ما ورته وویل: زه هغه وخت ورسره نه وم.

# ۴۳- طنز

طنز په ټولنه کې په یوه شخص، کار، اړخ، طرز العمل، هیئت او حالت په ټوکو ټوکو کې تنقید کولو ته ویل کېږي. طنز په داسې ټوکو انځورګري کوي چې ښکاره د خندا او حقیقت کې د افسوس وړ وي.

بېلګه یې داده:

فضل د مولا دی اوس پیسو ته برابر شومه
شکر چې رهبر شومه
ډېر یم خوش نصیبه له دنیا نه چې خبر شومه
شکر چې رهبر شومه

دا څنګه زندګي وه نه مې مال و نه مې هال و
هر چاته به مې سوال و
په څه تکليف نيولی مې کابل کې امامت و
ټول ژوند مې په ذلت و
سړې ټوکړې ډوډۍ وې وظيفه به مې خوراک و
د مړو مې پوښاک و
چې مړی به مې ولمباوه سخات ته به اوتر شومه
شکر چې رهبر شومه
په کور به چې ګنده شو بيا هغه ماته ليلام و
همدغه مې انعام و
که سپي به و څټلی يا به پاتې شو له چا نه
قربان به شو له ما نه
خواري وه غريبي وه محتاجي وه بد قسمت و
هر څه ته مې حاجت و
چې مړي به رنګي شو بيا به بدو نه بتر شومه
شکر چې رهبر شومه
هغوی چې شهيدان شول رب دې وبخښي چې مړه شول
زمونږ لپاره ښه شول
جهاد و که هجرت و څه عجيبه خزانه وه
بې مثله ترانه وه

روانه گوزاره شوه په خوندونو باندې سر شومه
شکر چې رهبر شومه
قران دی که حديث دی که اسلام که شريعت دی
ښه نوم پکې دعوت دی
که کونډه که يتيم دی که معـهد که مدرسه ده
خوږه نامه پيسه ده
جومات دی که طالب دی که داعي دی که امام دی
زما ورته سلام دی
دا ټول ښه شعارونه دي زه پوه يې په اثر شومه
شکر چې رهبر شومه
شورا ته څه حاجت دی په خپل کور ښه دی پوره يم
په هر څه کې کره يم
يو زه يو مې ټبر لونه زامن جوړه شورا ده
باک نه کوي روا ده
تنظيم مې ټول له کوره سرمايه مې له بهره
بې ريړه بې خطره
کمال په ما کې دا دی چې د ځان لپاره زر شومه
شکر چې رهبر شومه
يو څو غوړه مالان او تالي څتي راسره دي
خاص ماته په اسره دي
تل وايي زنده باد راته چاپېر رانه تاوېږي
زما په ډول گډېږي

پیسو سره بلد شوم که ډالر دی که ریال دی
هریومې انډیوال دی
کلدارې مې دي خوښي افغانو نه لاس په سر شومه
شکر چې رهبر شومه
ریښتیا که درته ووایم وطن څخه بېزار یم
خوښ دلته په قرار یم
دي هلته زما څه زامن مې دلته تجارت کړي
هر څه کې رقابت کړي
سټورونه دي کلبونه دي بارگین لرم بنگلې دي
چرچې دي هم مېلې دي
ریښتیا چې راته وایي مسلم دوست نه په حذرشومه[۱]
شکر چې رهبر شومه

# ۴۴- مزاحیه

مزاح په لغت کې ټوکې ته و یل کېږي او په اصــطلاح کې هم د خوښــۍ او خندولو لپاره یوې خبرې ته مزاح و یل کېږي. مزاحیه صنعت هم د ادب یوه برخه ده خو ښه هغه دی چې ریښتیا وي. بېلګه یې داده:

---

۱_ حذر: وېره، ډار.

زما جانان خو شهزاده دی
چا حرامیانو پرې تارکول مږلي دینه

یادا:

زما لیلی داسې ښایسته ده
لکه له مېښې نه چې وباسې ښکرونه

یادا:

ټټی ده که ډېران دی او که خوله د نسواري ده
یو رنګه مرداري ده
چې خر کله په شنو شي یاد شنو غويي په داره
یا کوړکه چرګه څاره

# ۴۵ - شعري غلاوې

لکه څرنګه چې د ادب په میدان کې پیاوړي ادیبان شته، ادبي غله هم شته چې د نورو مضامین، شعر، نثر او نور ادبي اصناف ځان ته منسوبوي.
که یو څوک د چا عبارت، مضمون، شعر یا نثر رانقل کړي او دمنقول عنه (له چا نه چې رانقل شوی وي) نوم واخلي یا یې اثر ته

حواله ورکړي، دا کومه بده خبره نه ده بلکې د ادبي سلسلې یوه کړۍ ده. همدارنګه هغه عامې تشبیه، استعارې، کنایې، مجازونه... چې زیات مشهور دي او هر څوک یې پېژني او عام ادیبان یې استعالوي، د هغو استعمال هم غلانه ګڼل کېږي. همدارنګه د چاپه اقتفاء، وزن، سجعې او څپو نوی شعر لیکل هم غلانه ده.

ادبي غلاوې په درې ډوله دي:

۱- نسخ یا انتحال.

۲- مسخ یا اغاره.

۳- سلخ یا اِلمام.

## نَسخه

(نسخه) چې (انتحال) هم بلل کېږي په درې ډوله ده:

۱- کټ مټ.

۲- ورته.

۳- سرچپه.

# ۱- کټ مټ

دا هغه غلا ده چې ادبي غل بې له کوم لفظي او معنوي بدلون او توپیر څخه د بل چا ادبي صنف کټ مټ را واخلي او خپل ځان ته یې منسوب کړي، دا ډول غلا سوچه او ډاګیزه ده. بېلګه یې داده:

حســن خط د بیداری و مخ ته ورکړ
چې ښکاره شو په غدارو د نګار خط
ستا د شونډو مهره څوک واخلي دلبره
چې ترې پرېوت چارپېره لکه ښا مار خط

دا شعر محمدامان کټ مټ د عبدالقادر خټک له دېوان څخه اخیستی او ځان ته یې منسوب کړی دی[1].

# ۲- ورته

ورته دې ته ویل کېږي چې کټ مټ لفظونه را نه وړي خو د هغه مرادف او ورته لفظونه راوړي. لکه د عبدالرحمن بابا دا بیت:

---

۱- د پښتو اشعارو ډولونه (رېښتین).

په ښه خوی له بدخواهانو بې پروا يم
په نرمۍ لکه اوبه د اورسزا يم

چې عبدالقادر خان خټک داسې راوړی دی:

له هغوی مې څه اندوه چې په خوی اور وي
په خپل خوی کې سوړ او نرم تر اوبه يم

خو دا هم کېدی شي چې عبدالرحمن بابا له عبدالقادر خان نه نقل کړی وی، ځکه چې دواړه همزولي وو.

# ۳- سرچپه

سرچپه دې ته ویل کېږي چې د شعر کومه معنا وي د هغې خلاف او ضد معنا په هماغه طرز راوړي. لکه عبدالحمید چې وايي:

لکه سر د پسه په اور غاښونه سپين کا
ماله نن له ډېره غمه خندا راغله

علي خان دا شعر داسې سرچپه کړی دی:

لکه و څاخي شونډې د اور له تاوه
هسې ما له نن له غمه ژړا راغله

د دې شعر طرز د عبدالحمید بابا د شعر دی خو خندا یې په ژړا بدله کړې ده او د پسه د سر د غاښو سپینوالی یې د شونډې په څڅېدو بدل کړي دي.

## مسخه

مسخه چې اغاره هم بلل کېږي دې ته ویل کېږي چې په شعر کې څه بدلون راوړي او داپه درې ډوله دی:

۱- ممدوح.

۲- مساوي.

۳- مذموم.

## ۱- ممدوح (ستایل شوی)

ممدوح هغه مسخه بدلون دی چې شاعر د بل چا شعر کې داسې بدلون وکړي چې نقل له اصل نه ښه بریښي؛ داسې بدلون نه یوازې دا چې بدنه دی بلکې ستایل کېږي او ښه ګڼل کېږي. بېلګه یې هغه ده چې مخکې د نسخې یا انتحال په دوهم ډول (ورته) کې تېر شو، که عبدالرحمن بابا له عبدالقادر خان خټک نه نقل کړی وي نو د

عبدالرحمن دا نقل د مســخې ممدوح ډول دی ځکه چې د عبدالقادر خان له شعر نه ډېر ښه دی.

## ۲- مساوي

دا هغه مسـخه بدلون دی چې نقل له اصـل نه ښـه هم نه وي او ناوړه هم نه وي، بلکې دواړه برابر وي. دا ډول بدلون نه د ستايلو وړ وي او نه د غندلو خو فضيلت او ښه والی اصل ته حاصل وي.

لکه د قلندر افريدي دا شعر:

چې پرې غم غلطـاوه شــي هغـه درې دي
يــو قــلـم دويــم بـيـاض دريـم اشـــعــار

چې د عبدالقادر خټک له دې شعر څخه يې نقل کړی دی:

چې پرې غم غلطوم درې مې محرم دي
يو قلم دويم کتـاب دريم اشــعـار خپـل

# ۳- مذموم

(مذموم) هغه مســخه بدلون ته ویل کېږي چې نقل له اصــل ښخه ناوړه او بې کاره وي. دا بد ګڼل کېږي او غندل کېږي. لکه د رضواني دا شعر:

ستا په سپین تندي ای جانه دا شین خال دی
کــه اذان تــه د ســـحـر ولاړ بــلال دی

چې د عبدالحمید بابا له دې شعر ښخه نقل شوی دی:

دا پــه وچـولـي تــور خـال زمـا د یـار دی
کـــه اذان لـــره خـــتـــلـــی دی بـــلال

دلته نقل له اصل نه بې کاره دی.

## سلخه

(ســلخه) چې (الـمام) هم بلل کېږي دې ته ویل کېږي چې شـاعر د بل چاد شعر یوائې معنا راواخلي. دا هم په درې ډوله ده:

۱- ممدوح.
۲- مساوي.
۳- مذموم.

# ۱- ممدوح

دا هغه الهام بدلون دی چې نقل له اصل نه زيات بليغ وي. دا ډول نقل ستايل کېږي او ښه ګڼل کېږي. لکه د عبدالعظيم دا شعر:

اوس زمونږ د زمانې نه برکت لاړ
د هر چا د زړه نه مهر ومحبت لاړ

چې د اخون ګدا له دې شعر نه يې اخيستی دی:

له جهانه مهر ومينه محبت لاړ
له هر چانه اخلاص صدق محبت لاړ

دلته نقل له اصل ښخه ښه دی.

# ۲- مساوي

دا هغه الهام بدلون دی چې نقل له اصل ښخه نه ښه وي او نه بد، بلکې دواړه سره برابر وي. لکه د ميرزاعبدالحنان بارکزي دا شعر:

عمر درومي په شتاب
دم قدم دی په حساب

چې د عبدالرحمن بابا له دې شعر نه يې نقل کړی دی :

دلته دم او قدم دواړه په حساب دي
پل غلط له لارې مه ږده بې حسابه

دا دواړه سره برابر ښکارېږي، اګر چې که ټول اړخونه يې وڅېړو د عبدالرحمن بابا شعر پرې ښه دی خو د روانۍ او د يوې معنا د اشتراک له مخې يې سره مساوي بولو.

# ۳- مذموم

دا هغه المام بدلون دی چې نقل له اصل څخه بې کاره، بې خونده او ناوړه وي؛ دا ډول بدلون غندل کېږي او بد ګڼل کېږي.
لکه دميرزاعبدالحنان دا شعر:

پرمخ دې راغی، کرار کرار خط
رخسار دې لاندې، کړ وار په وار خط

دښمن هسې چارې، پر دښمن نه که
لکه چې وکړې، ستا په رخسار خط

داسې برېښي چې ميرزاعبدالحنان د عبدالحيمد بابا دې شعر نه نقل کړی دی چې:

خط په مخ د صنم راغی
که سپوږمۍ شوه په هاله کې

دایې غابښ په خوله کې زېب کا
که ژاله شوه په لاله کې

او دا ځکه چې میرزاعبدالحنان خپله وایي :

د حمید د خوش نظمۍ په زراعت کې
دا حنان یې دی د شعر خوشه چین

خو دلته یې خوشه چیني لږه بې خونده ده.

# ۴۶ - توارد

(توارد) دې ته ویل کېږي چې د شاعر تخیل، ذهن او اند په تصادفي توګه هغې خواته لاړ شي چې د بل شاعر خیال هم هماغه خواته تللی وي او د دواړو شعر یو مطلب څرګند کړي؛ دا هغه وخت کېږي چې یو د بل شعر نه وي لیدلی خو افکار یې سره ورته وي او یادغه یو شعر کې سره ورته وي.

دا ډول شعر غلا کې نه راځي او نه غندل کېږي بلکې د ستاینې او تقدیر وړ دی.

# ۴۷- اقتباس

(اقتباس) دې ته ويل کېږي چې په شعر يا نثر کې د قران کريم يا حديث الفاظ دا سې ويېيل شي چې څرګند نه برېښي. دا هم روا او د ستاينې وړ دی. لکه:

مسلمان په مسلمان لري حرمت
که يې وينه ده که مال دی که يې پت

دا شعر د دې حديث مضمون دی چې:

"كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ، دَمُهُ وَمَالُهُ وَ عِرْضُهُ".

" ټول مسلمان په بل مسلمان حرام دی، که د هغه وينه ده که يې مال دی او که عزت ".

# ۴۸- عقد

(عقد) نثر په نظم او شعر بدلولو ته ويل کېږي. لکه د چا کتاب يا مضمون د ځينو الفاظو په زياتولو او کمولو سره په شعر واړوي. دا هم ښه کار او د ستاينې وړ دی.

# ۴۹- حل

«حل» نظم او شـعر په نثر بدلولو ته ویل کیږي. لکه د چا شـعر راواخلې، په نثر یې واړوې او یو مضمون یا کتاب ترې جوړ کړې. دا کار هم ښه دی او د ستاینې او تقدیر وړ دی.

# ۵۰- تضمین

«تضمین» دې ته ویل کیږي چې شاعر د خپل شعر په ترڅ کې د بل چا پوره یا نیمګړی شـعر راوړي، خو که مشـهور نه وي نوم اخیسـتل یا ورته اشـاره کول ضـروري ګڼل کیږي او که د شـاعـرانو او ادیبانو تر منځ مشهور وي نو بیا که نوم وانه خیستل شي یا ورته اشاره ونه شي نو باک نه کوي . لکه د مطیع الله دا شعر:

د مـکـې پـه طـواف خر نـه حـاجي کـیـږي
دا ویـنـا د اولـیـاء ده سـودا نـه ده

چې د عبدالرحمن بابا داشعر یې تضمین کړی دی :

د مکې په بزرګۍ کې هیڅ شک نشته
ولې خر به حاجي نه شي په طواف

## د پښتو شعر ډولونه

په لومړي وېش پښتو هم د نورو ژبو په څېر دوه ډوله شعرونه لري:

۱- عروضي او د دېواني.
۲- ملي او ولسي.

او هر شعر دوه ډوله وي:

۱- د محتوا او موضوع له مخې.
۲- د جوړښت او هیئت له مخې.

## لومړی: عروضي او د دېواني شعر

(عروضي) یا (دېواني) هغه شعر دی چې د ځانګړیو منل شویو شعري قوانینو په بنسټونو جوړ شوی وي.

اګر چې دا ډول اصطلاحات له عربي ژبې نه اخیستل شوي دي، خو ځینې بنسټونه دا سې وي چې د ټولو ژبو سره شریک وي او بې له دې چې له بلې ژبې سره پرتله شي، د ژبو د فطري طبیعت د یووالي له امله سره یو ډول وي، او بې تکلفه په یو قالب کې سره

راتلی شي؛ هغه بنسټونه ترې مستثنا دي چې د یوې ژبې ځانګړ تیا بلل کیږي او هغه په تکلف له نورو ژبو سره برابرول بنه نه بریښي.
د پښتو ژبې د عروضي او دېواني شعر ډولونه په لاندې ډول دي:

## (۱)- د موضوع او محتواله مخې

## ۱ - حمد (ثنا)

(حمد او ثنا) په لغت کې ستایلو ته ویل کیږي، او په اصطلاح کې د الله تعالی د لوی والي، قدرت او صفاتو پرله پسې ستایلو ته حمد یا ثنا ویل کیږي. د جوړښت له مخې حمد کوم ځانګړی هیئت نه لري؛ په هر جوړښت کې چې ښه څرګند، بلیغ او ښکلی بریښي، هغه ورسره مناسب دی. بېلګه یې داده:

څنګه وکړو ابتدا ستاد ثنا
ربه نشته منتها ستا د ثنا
هر بنده که دې په زر ژبو ګویا شي
وبه نه شي انتها ستا د ثنا
ده نړۍ ستا په ثنا باندې ودانه
لمر سپوږمۍ کې ده رڼا ستا د ثنا

موجودات او کائنات دې ثنا وايي
لا ده لويه اقتضا ستا د ثنا
هيڅ شېبه ستا له ثنا نه خالي نه ده
ذکر وي بېګا سبا ستا د ثنا
له تا پرته ربه ځای د پنا نشته
مونږ ته راکړه ښه پنا ستا د ثنا
ستا ثنا وايو خالقه تاته اړ يوو
مونږ به غواړو استغنا ستا د ثنا
ربه تل تانه توفيق د ثنا غواړي
دوست ته ورکړه اعتنا ستا د ثنا(۱)

## ۲- مناجات

(مناجات) په لغت کې پټې جرګې او دراز خبرو ته ويل کېږي او په اصطلاح کې الله تعالی ته د بنده عاجزي، خواري او احتياج وړاندې کول او له هغه جل جلاله څخه د خپلو اړتياو د پوره کولو غوښتنه، بلنه، دعاء، سپارښتنه او زاري کول مناجات بلل کېږي. په جوړښت کې کوم خاص هيئت نه لري، په کوم کې چې ښه برېښي هماغه يې جوړښت او قالب دی. لکه:

۱_ اعتنا: اهميت، غور.

زمونږه ربه ای زمونږ د امیدونو ربه
د کائناتو د پیدا او درازونو ربه

د مخلوقاتو د بقا او د پنا څښتنه
ای د نړۍ د هر زوال او ارتقا څښتنه

د لویې ځمکې اسمانونو او خلا څښتنه
په هریو کار د خپلې خوښې او رضا څښتنه

ای د اجرامو او ذرو او عنصرونو ربه
د کائناتو د پیدا او د رازونو ربه

د اضطراب او تزلزل او دبدلون خالقه
د اطمینان او د قرار او د سکون خالقه

ای د جنګونو د ورانیو او شبخون خالقه
د روغې جوړې او د سولې اوسمون خالقه

دانبیاؤ پرښتو او کتابونو ربه
دکائناتودپیدا او درازونو ربه

ای په اندونو اندېښنو زمونږ په کړو خبره
په دې غمیزو او زخمونو او زګېروو خبره

زمونږ په ستونزو کړاوونو او دردو خبره
د زمانې په ناروا کړو وړو خبره

په حال مو رحم وکړه ای د رحمتونو ربه
د کائناتو د پیدا او د رازونو ربه

مونږ ګوناهګار یو ته رحمان یې هم رحیم مالکه
مونږ خطا کار یو ته غفور یې هم کریم مالکه

که مونږه سر غړوو ته هم یې حلیم مالکه
مونږ بنده ګان یو ته الله یې ای عظیم مالکه

ای مهربانه شه راتېرله ګوناهونو ربه
دکائناتو د پیدا او د رازونو ربه

نېکي مو نشته خوتایو ګڼو توحیددې منو
قران منو، قیامت منو، وعد او وعید دې منو

ستا ټول صفات منو یوتا منوحمید دې منو
حاکمیت یواځې ستا منو مجید دې منو

چارې مو سمې کړه د ژوند او د مرګونو ربه
د کائناتو د پیدا او د رازونو ربه

# ۳- نعت

(نعت) په لغت کې صفت ته ویل کېږي چې ستایل وي او که غندل. او په اصطلاح کې د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د شخصیت، اخلاقو اوکړو وړو ستایلو ته نعت ویل کېږي. کوم

ځانګړې جوړښت نه لري، کوم هیئت چې ورسره مناسب ؤ هماغه یې جوړښت دی. بېلګه یې داده:

مولود چې په مکه کې هویدا شو محمد
تیار و د جهالت لره سبا شو محمد
حِرانه راڅرګنده شوه سپوږمۍ د رحمتونو
تربږمۍ د فسادونو ته رڼا شو محمد
مظلوم کره خوښي شوه د یتیم اوښکې شوې وچې
سمون لره، بدلون لره پیدا شو محمد
د ظلم غلبې وې د ستم توري پردې وې
تورتم د ګمراهۍ ته رهنما شو محمد
رحمت شو بې توپیره برابر ګردې نړۍ ته
انسان لپاره زېرى په ریښتیا شو محمد
سودونه وو ظلمونه وو نړۍ ټوله بېماره
دې ګردو ګړاوونو ته دوا شو محمد
وروري او همدردي او عدالت وو نړېدلې
دې لوړو ارزښتونو ته ځلا شو محمد
لمسون ؤ بې باکي وه بې لاري حق تلفي وه
دې ټولو بدرنګيو ته ښکلا شو محمد
الفت او محبت شو لیاقت او سعادت شو
بېمارو پرګنو ته مسیحا شو محمد

له ټولو خطرونو بې پروا عالي جرات ؤ
په بدر او اُحُد کې بر ملا شو محمد
لارښود ؤ پېغمبر ؤ همېشه د حق په خواؤ
له ټولو بریادیو نه جلا شو محمد
هلاک به مسلم دوسته مخالف د محمد وي
هر چا لره قدوه او مقتدا شو محمد
(صلی الله علیه وسلم)

## ۴- مرثیه (ویرنه)

مرثیه د مړه انسان یاد، ستاینې او د غم ښکاره کولو ته ویل کېږي. جوړښت کې کوم ځانګړی هیئت نه لري، کوم چې مناسب وګڼل شو په هماغه هیئت کې جوړېږي. بېلګه یې داده:
د حاجي امیرخان لور (بي بي زینب) د خپل ورور: (شاه محمود) په مړینه دا ویرنه ویلې ده:[1]

ږغ سو چې ورور تېر له دنیا سونا
قندهار واړه په ژړا سونا

زړه مې په ویر کې مبتلا سونا
چې شاه محمود له ما جلا سونا

---

۱- پټه خزانه: ۱۸۸.

دا روڼ جهان راته تورتم دئ نا
زړه د ببلتون په تېغ کرم دئ نا
هوتک غمجن په دې ماتم دئ نا
د پاچا هی تاج مو بر هم دئ نا
چې شاه محمود تېر له دنیا سونا
قندهار واره په ژړا سونا
ځوان ؤ مېړه د توري جنګ ؤ نا
ولاړ د کام په نام و ننګ ؤ نا
دښمن له ده په وینو رنګ ؤ نا
پر میدان شېر ؤ یا پلنګ ؤ نا
افسوس چې مرګ د ده په خوا سونا
قندهار واره په ژړا سونا

## ۵- مدحه (ستاینه)

(مدحه) ستایلو او د ښو خویونو او کړو وړو یادولو ته ویل کېږي. بیلګه یې داده:

ښکارندوی[۱] د محمد سام شنسباني[۲] په مدحه کې وايي:

د ســپرلي ښــکلو نکي بيا کړه ســينګارونه
بيــا يــې ولـونـل پــه غـرونـو کــې لالـونـه[۳]

له دې مطلع نه وروســته د پســرلي په هکله ګڼ بيتونه وايې او بيا وايي:

نه به چونې په ســتا يه د جنډيو موږ ســي[۴]
نه به موږ ســم د ســلطان په صــفتونه

د شـــنســـب د کـهـالـه ختـلـی لـمـر دی[۵]
دســـپـرلـي پـه دود ودان لـه ده رغـونـه

۱ - (ښکارندوی): د احمدزوی دی او د غور پلازمېنې: (فيروز کوه) کې د غوري حکمرانانو يو لوړ رتبه مامور ؤ. يو عالم، اديب، او شاعرهم ؤ.
۲ - محمد سام شنسباني د غوري حاکمانو څخه يو مشهور حاکم ؤ چې په سلطان محمد سام يادېده؛ شنسباني د هغه نيکه: (شنسب) ته نسبت دی.
۳- لونل: شيندل.
۴- چونې : بلبلې . جنډی : ګل .
۵- شنسب بن خدنک د غوري بادشاهانو نيکه ؤ چې د علي رضی الله عنه په خلافت کې يې د هغه په لاس ايمان راوړی ؤ او د هغه له پلوه سر لښکر هم ګمارل شوی ؤ.
کهاله : دکهول څخه دی چې کورنۍ ته ويل کېږي.

له ښـندو اورو يې درسـت ايواد زرغون کړ[۱]
لـه قصـــداره تـر ديـبلـه يـې يـو نـونـه[۲]

پـه زابـل چې د بري پرنيلې سـپورسـي[۳]
پـه لاهـور يـې د مـېـړانـې ګـوزارونـه

نـه يې څوک مخ تـه دري د مير څــــمنو[۴]
نـه يې تورې تـه ټينګېږي کلـک ډالونـه

د اســلام د دين شــهـاب د نړۍ لمر دی[۵]
تورســتهـان يې کړ رڼـا پـه جهـادونـه[۶]

هره پلا چې دی پر هند و ســند يرغـل کـا
رڼـوي تـوره نـړۍ پــه شـــهـابـونـه[۷]

---

۱- ايواد: هېواد، وطن.
۲- قصدار يا قدار يا قزدار: د هند او سيستان تر منځ د بلوچستان په څنډو کې د يو ځای نوم دی. ديبل: د هندوستان د بحر په غاړه د سند بندرګاه وه. يون: په غور ځنګ تللو ته ويل کېږي.
۳- نيلی: اس.
۴- ميرڅمن: دښمن، بې کاره، کرغېړن.
۵- شهاب: لمبه، رڼا.
۶- ستهان، ستان: ظرف، مملکت، ځای، ټاټوبی.
۷- پټه خزانه: ۵۴.

## ۶ - هجو (غندنه)

(هجو) د یو قوم، کورنۍ، کور یا شــخص غندنې او د هغوي د ناوړه کړو یادونې ته ویل کېږي. بېلګه یې داده:

مــیـر څـمـن ســره مې کړې وه دوســـتي
نــه وفــا وه نــه حـیــا وه نــه راســـتـي
یــنــګــرانــو ســـره مــه کــوئ یــاري
مــالــیــدلــې ده پــه دوی کــې غــداري
رو د تېښــتـې بــه دا ګوري هر ســاعـت
بې غـیـرت دی پکـې نـشـتـه لـیــاقــت
صــبــر مــه کــوه پــه کــړو د مــیــرڅــمــن
لـه ارذالـو ســره نــه ګــرځــي پــتــمــن
مــالــیــدلــې لــه هــغــه ســره نــېــکــي
ســر تــر پــایــه ده بــدي او بــې بــاکــي
لـــه رذیــل نـــه تــوقـــع د شـــرافــت

که چا کړې ثمره یې ندامت

# ۷- ویاړنه

په خپل دین، قوم، ژبه، نیکونو، تورې، مېړانې، زړورتیا او نورو اوچتو صفتونو ویاړ کولو ته ویاړنه ویل کېږي. بېلګه یې داده:

امیر کروړ[1] وایي:

زه یم زمری پردې نړۍ له ما اتل نسته[2]
په هندوستان او پر تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نسته
له ما اتل نسته

---

۱- امیر کروړ د امیر پولاد سوري غوري زوی ؤ، په (۱۳۹) هـ ق کې د غور په مندېش کې امیر شو؛ امیر کروړ ډېر غښتلی اتل ؤ، ابوالعباس سفاح چې کله بني امیه سره جګړې کولې او ابو مسلم خراساني افغاني یې ملګری ؤ امیر کروړ جهان پهلوان هم د هغوی په مرسته کې ډېرې فتحې کړې وې او مېړانه یې ښودلې وه چې د خپلو فتوحاتو او تورې په هکله یې همدا پورتنۍ ویاړنه ویلې وه.

۲- اتل: پهلوان ،قهرمان.

غشـــی دمن مې ځي برېښــنا په میر ثمنو باندې[۱]
پـه ژوبلـه یو نم یرغـالم پرتښــتېـدونو بـانـدې[۲]
پـــه مـــا تـــېـــدونـــو بـــانـــدې
لـــه مـــا اتـــل نســـتـــه

زما د بریو پرخول تاوېږي هسـک په نمنځ او په ویاړ[۳]
د اس له ســوو مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ[۴]
کـــړم ایـــوادونـــه او جـــاړ[۵]
لـــه مـــا اتـــل نســـتـــه
زمـا د تورې تر شـپول لانـدې دي هرات و جروم[۶]
غرج وبـا میـان وتخـار بولي نوم زمـا پـه اودوم[۷]
زه پـــېـــژنـــدویـــم پـــه رو م[۸]
لـــه مـــا اتـــل نســـتـــه

---

۱- من : د سنسکریتي ژبې اریایي کلمه ده چې زړه ته ویل کېږي او په پخوانۍ پښتو کې دارادې په معنا استعمال شوې ده چې دلته یې هم معنا «اراده» ده.
۲- یرغالم : د یرغل دمضارع مفرد متکلم کلمه ده یعنې حمله او هجوم کوم.
۳- بریو : د «بري» جمع ده. فتح او کامراني. هسک : اسمان. نمنځ : نمانځنه یا لمانځنه. ویاړ : افتخار.
۴- سوو : سومانو. لتاړ: دړې وړې شیندلی، ګډ وډ.
۵- اوجاړ : ویجاړ، ړنګ.
٦- جروم : له ګرم نه دی، دافغانستان جنوبي برخه.
۷- اودوم : زهر، چاره.
۸- پېژندو : مشهور.

پـرمـرو زمـاغشـــی لـونـي ډاري دښـــن راڅـخـه[1]
د هر يوالرود پرڅنـډو ځمـه تښـــتي پلن راڅخـه[2]
رېـــــي زړن راڅــــــخـــــــه[3]
لــــه مـــا اتــــل نســــتــــه

# ۸ - حماسي

حماسـه په لغت کې سـختوالي، شـدت او زړورتيا ته ويل کېږي، او په شعري اصطلاح کې حما سي هغو شعرونو ته ويل کېږي چې موضوع يې جنګ، مېړانه، ښندنه، زړورتيا، ننګ، غيرت، توره او ويارنه وي. ويارنه د حماسـي شـعر يوه برخه ده او توپير يې دادی چې (ويارنې) کې يوائې افتخاري اړخونه وي او په حماســي کې مخکني تېول ډولونه او اړخونه وي؛ سرېېره پردې په جنګ تېزول او ولولې راپارول هم په حماسـي شـعرونو کې ګډل کېږي. د (ويارنې) او (حماسي) شعر منځ کې تنا سب د عموم خصوص مطلق دی، هره ويارنه حماسه ده او هر حماسي شعر ويارنه نه ده.

بېلګه يې د خوشحال خټک دا شعر دی:

---

۱- لوني: شيندي. ډاري: وېرېږي. دښن: دښمن.
۲- پلن: پلی يا غښتلی.
۳- زړن: زړور.

د افـغـان پـه نـنـګ مـې وتـړلـه تـوره
ننګیـالی د زمـانې خوشــحـال ختـک یم

یالکه داشعر:

چې خوشــحـال یې وه پـه ننګ تړلې توره
زه همـاغـه ننګیـالی پښــتـون افغـان یم
تـول جـهـان مـې غـږ د تـورې اورېـدلـی
و هر چـاتـه زه د لـمر غونـدې عیـان یم

معما، طنز او مزاح هم د موضــوع له مخې ډولونو کې راځي چې مخکې د بدیع ډولونو کې تېر شو.

## (۲)- د جوړښت له مخې

د عروضي اودېواني شعر دوهم وېش د جوړښت له مخې دی چې لاندې ډولونه لري:

## ۱- غزل، نسیب او تشبیب

(غزل) مصـــدر دی د غَزَلَ یَغْزِل نه؛ په لغت کې د ځوانو هلکانو او جنکو خبرو، د محبوب د غږوســتـا ینې او د میینو (محـب او محبوب) تر منځ کړو وړو، خبرو او ښـځو سـره لوبو ته ویل کېږي. تغازُل یو تر بله د مینې خبروته ویل کېږي او تَغَزُل په تکلف ســره غزل ویلو ته ویل کېږي. (غزل)، (نسـیب) او (تشـبیب) ســره نږدې دي. نســیب د مینې حال او تشــبیب په ډاګیزه توګه د محبوب او دهغه د صفاتو یادونې ته ویل کېږي. او کله کله درې واړه یو د بل په ځای استعمالیږي.

په اصطلاح کې غزل د شعر هغه ډول دی چې سر تر پا یه یو وزن او یوه قافیه ولري. که ردیف ولري نو هم د ټولو یو ردیف وي او که نه نو قافیه او وزن خو به ارو مرو یو وي. په یو بیت کې دوه مسرې وي او د ټولو بیتونو د دوهمې مسرې قافیې یو شان وي. د غزل لومړی بیت مطلع بلل کېږي چې په لغت کې د ختلو او ښکاره کېدو ځای ته ویل کېږي. شــاعر هم له همدې لارې نه راخېژي او راښـکاره کېږي. د مطلع د دواړو مسـرو قافیه به یوه وي او د نورو ټولو دوهمه مسره د مطلع په قافیې او وزن ویل کېږي.

اخري بیت مقطع بلل کېږي چې په لغت کې د غوڅېدو ځای ته ویل کېږي. شــاعر هم خپل شــعر په همدې بیت غوڅوي. په مقطع کې اکثر شــاعر خپل نوم یا تخلص یادوي، خو ضــروري نه ګڼل کېږي.

غزل لږ تر لږه پنځه بیتونه او زیات یې پنځلس بیتونه وي او که له دې لږ څه زیات شي هم بدنه برېښي.

په غزل کې د یوې موضوع تسلسل ضرور نه وي او اکثر هر بیت یوه ځانګړي موضـــوع وي، خو کله کله یو لنډ مطلب هم په څو بیتونو کې راوړل کېږي او له قصیدې سره یې توپیر همدا دی چې په قصـیده کې یوه موضـوع پر له پسـې څرګندېږي او په غزل کې داسې نه وي.

د غزل لپاره ځانګړې موضـوع نشـته، شـاعر کولی شـي چې هر مطلب پکې راونغاړي او یا ډېر مطالب پکې ځای کړي. بېلګه یې داده:

پـه علم چې رڼـا وي کوم قومونـه لکـه ســتوري
ځلېږي پـه تـاریخ کې یې نومونـه لکـه ســتوري
د زړه پـه ســـمندر کې مـو څـپې د ولـولـو دي
د ذهن په اســمان کې مو اندونه لکه ســتوري
تـیـارې کـه د ظـروفـو هـر څـو تـپـې وي او تـورې
له ورا یه را ته ښــکاري هدفونه لکه ســتوري
لوړوالی د مجـدونو مو د هســک لوري تـه بولي
وهي را ته له هســکه سـترګکونه لکه ســتوري
ســرتېتي لانـدې ګوري ځکـه لوړې ترې پـنـا وي
ســرلوړو ته ښــکاره وي لوړ ویاړونه لکه ســتوري

فضــــادمـعـرفـت چې وي بـريـنـډه لـه حـجـابـه
جوت وي بيا سـپېڅلي ارزښــتو نه لکه ســتوري

د عزم انتخاب کې دوســـت تـه مـه وايـه چې ولې؟
يـاد بـېږي پـه يـادونــو کې يــادونـه لـکـه ســتـوري

## ۲- د بند ترجيع

بند په يو شعر کې څو همقافيه بيتونو ته ويل کېږي چې وروسته ترې قافيه بدلېږي، او ترجيع راګرځېدلو او راســتنېدلو ته ويل کېږي. د بند ترجيع د غزل په ډول يو بند په يوه قافيه ويل کېږي چې اکثره لږ تر لږه پنځه او زيات يې لس بيتونه وي او کله له دې هم زياتېږي. خويو، دوه او درې هم کېدی شـــي ؛ کله مطلع لري اوکله نه. لومړي بند نه وروســـته يو بيت ورزياتېږي چې وزن او څپې يې د همدې بند غوندې وي. قافيه يې دمطلع په څېر وي اوکه مطلع ونه لري نوله بند نه بدله وي، بيا له هر بند نه وروســـته دمطلع يالومړي بند نه د وروســـته بيت په قافيه بيت بيا بيا راوړل کېږي چې همدې بيت ته د بيا بيا راګرځېدلو له امله ورته د بند

ترجیع ویل کېږي. د هر بند بیله او جلا قافیه وي خو د شعر وزن او څپې سر ترپایه یو ډول وي. بېلګه یې داده:

جګړې او جنجالونه او جنګونه به تر څو وي
دا وینې او دردونه او زخمونه به تر څو وي

وطن مو شو لوګی لوګی کورونه مو سوځېږي
وګړي مو سوځېږي جسدونه مو سوځېږي
کښتونه او فصلونه او باغونه مو سوځېږي
هم کلي هم ښارونه او هم غرونه مو سوځېږي

سکروټې انګارونه او اورونه به تر څو وي
دا وینې او دردونه او زخمونه به تر څو وي

ملت زمونږ لوټېږي او عزت زمونږ لوټېږي
سیاست زمونږ لوټېږي حکومت زمونږ لوټېږي
حیثیت او شرافت او کرامت زمونږ لوټېږي
وحدت زمونږ لوټېږي امانت زمونږ لوټېږي

دا ظلم او تیری او یرغلونه به ترڅو وي

دا ویــــــنې اودردونــه او زخمونــه بــه تر څو وي

تور مخي غلیمـا ن دي او ویـاړونو تـه مو غلـه دي
تـاریخ مو رنگوي او ارزښـــتونو تـه مو غلـه دي
پتونو تـه مو غلـه دي عظمتونو تـه مو غلـه دي
لالونو تـه مو غلـه دي دنگو غرونو تـه مو غلـه دي

دا ســـتونزې او ربړونه کړاوونه به تر څو وي
دا ویـنـې او دردونـه او زخـمونه به تر څو وي

# ۳- د بند ترکیب

بند مو مخکې وپېژنده او ترکیب سپرولو او یوځای کولو ته ویل کېږي. د بند ترکیب، د بند ترجیع په څېر وي خو دومره توپیر لري چې د بند ترکیب کې له هر بند نه وروســـته د جلا قافیې یو بیت ورزیاتېږي او بیا نه غبرګېږي، د هرو دوه بندونو منځ کې یو داسې بیت راوړل کېږي چې وزن او څپې یې له نور شعر سره یو شان وي خو قافیه یې جلا وي. او ترکیب یې هم له همدې کبله بولي چې شـاعر له هر بند نه وروسـته د بدلې قافیې یو بیت پرې سـپروي او ورسره یو ځای کوي یې. بېلګه یې داده:

یو دې بولو ربـــــه تـــــــه احد صمد یـــــــې

هم بې سیاله لَمْ یَلِدْ وَلَمْ یُولَدْ یې
ربه ته بې شکه رب العالمین یې
بې شریکه بې ګډونه په یقین یې
ته ځواکمن یې ته ذوالقوة المتین یې
نه شریک لرې کوم شی؛ یو یې په ذات کې
نه لمانځنې، عبادت، نوم او صفات کې
نه په فکر کې راتلی شې زما ربه!
نه په خیال کې ځایېدی شې زما ربه!
نه اټکل کې فرضېدی شې زما ربه!
لوړ له وهم او له شک او له ګومان یې
لوروونکی یې رحیم یې هم رحمان یې
لوی ښتنه ته ښتن د هر موجود یې
عبادت تا لره ښایي ته معبود یې
سجدې تا لره کوو زمونږ مسجود یې
لا اِلهَ اِلا الله وایو واحد یې
مَاتوونکی د کافر او د مُلحِد یې
ستا له واکه له اختیاره بهر نشته
ستا له کړو او ستا له کاره بهر نشته
ستا له علم او له شماره بهر نشته

په هر څه باندې برلاس يې ذوالجلاله
لوی سپېڅلی بې زواله بې مثاله

لويه ربه لوی دې ذات او لوی دې شان دی
پيدا کړی دې په کُن دا ټول جهان دی
لوی قانون دې رالېږلی سپين قرآن دی

ستا رحمت ستا په غضب باندې غالب دی
دا صفت دې زمونږ هيلو ته جالب دی

ته ښونکی مونږ بې وسه ګونا هګار يو
ستا لوی رحم او کرم ته اميد وار يو
د رجاء او خوف په منځ کې ستا په لار يو

دوسته لپه کړه لاسونه الله پاک ته
د دې ګردو کائناتو لوی ټولواک ته

## ۴- مثنوي (دوه ييز)

(مثنوي) هغه شعر ته ويل کېږي چې د هر بيت دواړه نيم بيتي سره يوه قافيه وي، د ټولو بيتونو وزن او څپې سره يو ډول وي خو قافيه د هر بيت جلا جلا وي. دا ډول شعر کومه ځانګړې موضوع

نه لري او هره موضوع پکې نغښتل کېدی شي؛ اکثره پکې کیسې ویل کېږي. بېلګه يې داده:

تـوره غـلـیـمـه تـور فـکـرونـه پـرېـږده
تـورې پـلـمـې او تـور ســوچـونـه پـرېـږده

دا ارزښـــتـونـه زمـونـږ مـه ړنـګـوه
پـتـمـن ویـاړونـه زمـونـږ مـه ړنـګـوه
زمـونـږ د پـت او د عـزت دښـمـنـه
د نـنـګ غـیـرت او د عـفـت دښـمـنـه

تـنـکـۍ نـازکـې غـوړګـې مـه رېـبـه نـور
پـه پـاکـو تـنـدو بـانـدې مـه تـپـه تـور
دا د نښـتـرو او لالـونـو وطـن
د سـپـیـنـو واورو لـوړو غـرونـو وطـن

د لـوړو مـنـځـو او ځـښـړ يـو وطـن
دا د شـمـلـو او د پـګـړیـو وطـن
دا د ګـورګـورو او مـزرو وطـن
د ښـکـلـو زرکـو او تـنـزرو وطـن

دا د پـیـاوړیـو نـنـګـیـالـو وطـن دی
دا د پـتـمـنـو مـېـړنـو وطـن دی

دې کې غښتلي اتلان اوسېږي
دې کې بازان زمري غازيان اوسېږي

دلته راغلي غليمان ماتېږي
دلته تور مخي رقيبان ماتېږي

چا چې په دې خاورې يرغل کړی دی
څه بلوسه ګواښ يا يې تکل کړی دی

بېرته سرماتي او رنګي وتلي
پرتوګ يې پاتې النګي وتلي

مه څېړه دا د نوميالیو وطن
د غيرتمنو توريالیو وطن

دې کې دوستان مسلمانان اوسېږي
ورونه او خويندې افغانان اوسېږي

## ۵- مثلث (درېيز)

(مثلث) هغه شعر ته ويل کېږي چې لومړی بند يې درې مصراعې (مسرې) وي او درې واړه په يوه قافيه وي د نورو بندونو دوه مصراعې يې په يوه قافيه وي او دريمه يې د سر بند په قافيه وي

او کله هم لومړی بیت یوه قافیه وي او دریمه مصـراعه بله وي خو هر بند چې درې مصـراعې وي مثلث بلل کېږي. او کله هم هر بند یوه قافیه وي؛ وزن او څپې د ټولو یو ډول وي. بېلګه یې داده:

روان پــه ســمــه لار
د عــلــم طــلــبــګــار
لـــه بــدونــه بــېــزار
ریښــتــونــی مســلــمــان
حــاصــل دې شـــه مــراد
وروري او اتـــحـــاد
دښـــمــن ســره جــهــاد
ځــان پــوه کــړه پــه قــران

یالکه دا:

عـدل او انصـــاف حق ته اعتراف کوه
کوه
بدو نه خلاف کوه
مل شـــه له ادب علم او مکتب سره
سره
زیار سره طلب سره
خپل شـــه د کتاب لرې کړه پرې غم الم
قـــلـــــم

پوه شه په اتم اهم (۱)

پــرېــږده د ذلــت تياري          تورې جهالت تياري
تېږې د قسوت تياري

اوځه د بدلون په لور          ژوند کې د ژوندون په لور
سپين د سباوون په لور

ســوله ســوکـالي واخلـــــــــــــه          مينه وروروالي واخله
ټوله خوشحالي واخله

ســيال شــه پـه ســيالانو کې          لـوړ شه اتـلانـو کې
شمېر شه کاملانو کې

# ۶ - مربع (څلوريز)

(څلوريز) هغه شــعر ته ويل کېږي چې هر بند يې څلور نيم بيتي وي. کله يو د مطلع بيت لري او کله د لومړيو څلورو مســرو يوه قـافيـه وي چې دوه بيتي مطلع بلـل کېږي؛ د نورو بنـدونو درې

---

۱_ اتم: ډېر پوره. اهم: ډېر مهم.

مسرې يوه قافيه وي او څلورمه د مطلع په قافيه وي؛ سرتر پايه د شعر وزن او څپې يو ډول وي. او کله څلور واړه مسرې يو ډول قافيه لري. بېلګه يې داده:

(۱) مغلوب شــو په نړۍ کې د الحاد طرفداران
د ظلم تغر ټول شــو چې توحيـد شــو راعيـا ن
هر خوا تيـاره خپره وه د انکـار او جهـالـت
تررېمۍ وه د فســاد ټول وواختـه پـه علالـت
د شــرک بـازار ۇ ګرم خرڅېـده بـه ضــلالـت

رڼـا شــوه راڅـرګـنـده ايـاتـونـه د قـران
دظلم تغر ټول شــو چې توحيـد شــو راعيـا ن[1]

يا لکه دا:

(۲) بېـلـتانه نـاره مې وســوه په کـور بـــاندې
نه پـوهـېږم چې بـه څـه وي پـېښ پـــه وړانـــدې
لــه خــپلـوانو به بــېلــېږم په ســرو ســترګــو
دواړه ســـترګې مــې پــه ويــنــو دي ژړانـــدې
اســماعيله ســـتـــا نــــارو مې زړګی ســـری کړ
بېـلــتانه خــرښــبـون بـيـا لـــه تـا پـــردی کړ

---

۱- د حق ګونګسی: ۴۶.

نه هیرېږي که مې بیا نه ستا یادی کړ
په چړو د ویر به پرې سي د زړه مراندې[1]

یادا:

(۳)کښېږدم د لمر خپره سوه
زما پر کور د ویر ناره سوه
د بېلتون ورځ توره تیاره سوه
ږغ سو ناڅاپه چې بېلتون راغی

زړه مې له دې ویرنې شین دی
په ژړا زاړم څه ناورین دئ[2]
زرغون له اوښو مې سادین دئ[3]
په نول نولېږم چې تاخون راغی[4]

# ۷ - مخمس (پنځیز)

۱ - پټه خزانه: ۲.
۲ - ناورین: مصیبت، غم، کړاو.
۳ - سادین: شو دیاره ځمکه.
۴ - نول: پرېشاني، غم. تاخون: هغه ناروغي چې وینه غور ځوي. پټه خزانه: ٦٢.

(مخمس) د مربع غوندې وي، خو توپیر یې دادی چې بندونه یې پنځه مسرې لري څلور یو ډول قافیه لري او پنځمه یې بدلېږي وزن او څپې سر تر پایه یو ډول وي کله یو بیت جلا مطلع لري او کله یې نه لري او کله پنځه واړه مسرې یو ډول قافیه لري. بېلګه یې داده:

د غلیمانو د پلمو او دسیسو له لاسه
د مختلفو رهبرانو تلوسو له لاسه
زمونږ بې ځایه ولولو او حماسو له لاسه
خپلو منځو کې د جنګونو د کیسو له لاسه

افغانستان کې د غمونو ماجرا جوړه شوه
لویه غوغا او ابتلا او واویلا جوړه شوه

وطن مو وران شو له کورو مو کنډوالې جوړې شوې
کډې په شا د هجرتونو قافلې جوړې شوې
او ښکې مو وینو سره یو ځای شوې ویالې جوړې شوې
زمونږ په حق کې د ظلمونو فیصلې جوړې شوې

یو انقلاب زوړ شوی نه وي پسې بل راځي
د طوفانونو بهیرونه په کابل راځي

ماشومان ډزو کې رالوي شو فقط جنګ پېژني

بڼ او ګلشن يې هيڅ ونه ليدل ګړنګ پېژني
روغ سلامت او ودان نه پېژني ړنګ پېژني
قلم كتاب نه محروم پاتې شوو بس ننګ پېژني

زه دا منم چې ميړني او توريالي ځوانان دي
خو ډېر ناپوهه جاهلان او جنګيالي ځوانان دي

دين د جنډو والا قبرونه تعويذونه ګڼو
علم پګړۍ لويه چپن سپين كميسونه ګڼو
زهد تقوی اوږدې تسبې پاسته لاسونه ګڼو
ټول شريعت مونږ خرافات او رواجونه ګڼو
د ملنګانو او پيرانو شكرانو تبا كړو
د ناپوهۍ ډېرو نادودو او كانو تبا كړو

يو بل ته غاړه سره نه ږدو تربګني پېژنو
تر پښو نيول راپرځول او دښمني پېژنو
كار د وهلو او وژلو تاواني پېژنو
ياغيان باغيان يوو نارامي ښه عياني پېژنو

ما تېرو نه خو زر غولېږو غوليدلي يوو تل
دوسته ريښتيا به سره وايو لمسېدلي يوو تل

# ۸ - مسدس (شپږيز)

(مسدس) هم د مربع او مخمس غوندې دی خو توپير يې دادی چې په دې کې هر بند شپږ مسرې لري چې پنځه يې يوه قافيه لري او شپږمه يې بدلېږي وزن او څپې د ټول شعر سر تر پايه يو ډول وي .
کله کله د مطلع يو جلا بيت لري او کله يې نه لري. او کله هم ټول شپږ واړه نيم بيتي يوه قافيه لري؛ د محتوا له مخې کومه ځانګړې موضوع نه لري او هر مطلب پکې بيانېدای شي. بېلګه يې داده:

اختره ښه راغلې په خير د مسلمان اختره
ای د روژې او عبادت او د قران اختره
ای د ټينګ عزم او يقين او د ايمان اختره
ای د پنجرو او زولنو او د زندان اختره
ای د يتيم د ترمو اوښکو د ارمان اختره

دلته دې څه کول اختره دلته غم غم دی
دلته ژړا دلته الم دلته ماتم تم دی

اختره لاړ شه په وطن کې مظلومان ژاړي
هلته د مړه او د ژوندي پلار يتيمان ژاړي

هلته زخمي زړونه سينې خيرې گرېوان ژاړي
هلته تور سرې مېندې خويندې ماشومان ژاړي
اوښكې يې وچې كړه غمجن او دېر حېران ژاړي

نوې خولۍ نوې جامې نوى لباس نشته
اختره مه راځه خوښي نشته احساس نشته

اختره دلته د غمونو قافلې راغلي
له تا نه مخكې د ظلمونو فيصلې راغلي
خوشحالي نشته كړاوونه غلبلې راغلي
دلته اهونه فريادونه او گيلې راغلي
شكر په دې چې زمونږ لوږې حوصلې راغلي

اختره دلته سرسايه نشته سرونه واخله
دې قربانۍ ته مونږ تيار يوو زمونږ زړونه واخله

اختره هغه ځاى ته لاړ شه چې مظهر وي ښكلى
هلته خندا وي او رنگونه وي منظر وي ښكلى
هلته عيدگاه وي او لمونځونه وي محضر وي ښكلى
هلته محفل وي معطر هلته مَجْمَر وي ښكلى
هلته فضا شرر وي او حَضَر وي ښكلى

دا بې وطنه مسافر او دا سفر څه کوې
دلته بې کوره او بې اوره او مُضطر څه کوې

اختره شپه ده لاړ شه زېری د سبا راوړه
تپه تیاره ده څه ډیوه رڼا رڼا راوړه
لاړ شه موسی چېرته پیدا کړه ترې امسا راوړه
دې جهالت ته مُزمل غار حرا راوړه
د نمرود اور ته د خلیل قوي سزا راوړه

اختره دلته اختر نشته ستا تصویر راځي
دوسته اواز د تکبیرونو او زنځیر راځي

## ۹ - مسبع (اوه پیز)

(مسبع) هم کله کله د مطلع یو جلا بیت لري او کله یې نه لري. هر بند اوه نیم بیتي لري چې شپږ یې په یوه قافیه وي او اوم یې د مطلع په قافیه وي چې د هر بند په اخر کې بدلېږي. او کله کله اوه واړه نیم بیتي یوه قافیه وي او هر بند په همدې ترتیب وي.
او که مطلع ونه لري د هر بند په اخر کې یوه مسره جلا راوړل کېږي چې د ټولو قافیه یو ډول وي. مسبع هم سر تر پایه یو ډول وزن او

څپې لري. د محتوا له مخې کومه ځانګړې موضــوع نه لري او هر ډول مطالب رانغاړي. بېلګه يې دا ده:

صـــــداقــت او امــانــت کــې مــروت وي
پــه دورواغــو او خــيــانــت کــې رذالــت وي
ورور پــالــنــه تـَعـقـُّـل او بصـــيــرت وي
ورور وژنــه، ســـر تــرپــايــه جـهــالــت وي
چــې ســـاتــلــی د انســـان يــې کــرامــت وي
پــه عــمــل کــې يــې اخــلاص او ديــانــت وي
د هــغــه بــرخــه الــفــت او لــيــاقــت وي

دېـتمن ژوندون، ژوندون دټول جهان شـــي
چــې پــت نــه لــري دښــمــن دهر انسان شي

# ۱۰ - مثمن (اته پيز)

د (مثمن) هر بند اته نيم بيتي لري چې اوه يې په يوه قافيه او اتم يې جلا قافيه لري. دا هم کله يو بيت مطلع لري او کله يې نه لري. د ټولو بندونو اتم نيم بيتی د مطلع په قافيه وي او که مطلع ونه لري بيا جلا قافيه لري چې د هر بند اخر کې هماغه قافيه راځي؛ او کله داســې هم وي چې اته واړه نيم بيتي يوه قافيه وي؛ ســرترپايه يو

وزن او یو ډول څپې لري د محتوا له مخې ځانګړې موضوع نه لري او هر ډول مطالب پکښې رانغښتل کېږي. بېلګه یې داده:

ای وطنه تا ضررو ابادوم
پټ په زړه کې ستا د مینې تپ لرم

ته مې مور یې ته مې ژوند یې تاکې مرم
ټولې ژمنې ستا په ننګ باندې ترم
ستا یادونه زه په زړه باندې لیکم
ستا دښمن به ستا له پولې نه شړم
ستا بچي به ستا سو کړک باندې پالم
خړې خاورې دې په سرو زرو منم
تاکې اوسم ستابریدونه به ساتم

## ۱۱ - متسع (نهه پیز)

د (متسع) هربند نهه نیم بیتي لري چې اته یې یوه قافیه او نهم یې جلا قافیه لري کله د مطلع یو جلا بیت لري او کله یې نه لري او کله ټول نهه نیم بیتي یوه قافیه وي د هر بند اخري نیم بیتی د مطلع په قافیه راوړل کېږي او که مطلع ونه لري بیا جلا قافیه لري چې د هر بند اخري نیم بیتي کې په همدې ډول قافیه راځي؛ سر تر پا یه ټول

بندونه یو ډول وزن او څپې لري؛ د محتوا له مخې کومه ځانګړې موضوع نه لري او هر ډول مطالب رانغاړي. بېلګه يې دا ده:

که څوک نـه شـي انسـانانو تـه قصـاب
پـرې اسـان بـه شـي د خوبـدو حسـاب
ښـه څرګنـد دي ټـول کارونـه د ثـواب
هـم ښـکاره دي د عتـاب او د عـذاب
پـه هغـه بانـدې اسـانه وي ځـواب
چې ونـه لـري پـه زړه کې اضـطراب
چې لـه بـده کـاره وکـړي اجتنـاب
او هـم حق تـه هڅـه کانـدي د صـواب
دا دعـقـل دی نـچـوړ لـُب او لـبـاب

# ۱۲ - معشر (لسيز)

(د معشر) هر بند لس نيم بيتي لري، نهه يې په يوه قافيه وي لسم يې جلا قافيه لري چې د هر بند په اخر کې راوړل کېږي. کله لس واړه نيم بيتي يوه قافيه وي او نور بندونه هم په همدې ترتيب وي، کله د مطلع يو جلا بيت لري او کله يې نه لري؛ سـر تر پايه يو ډول

وزن او څپې لري؛ د محتوا له مخې ځانګړې موضوع نه لري او هر ډول مطالب رانغاړي. بېلګه يې دا ده:

راځئ چې وکړو په اخلاص د اخوت خبرې
د تېرېدنې د انصاف او عدالت خبرې
جنګونه تېر شو ورور وژنې او ظلمونه تېرشو
ورانۍ مو ډېرې وکړې هم وينې زخمونه تېرشو
د بدمرغۍ ټولې بېلګې او انجامونه تېرشو
تنظيم پرستې قافلې بيل مرامونه تېرشو
د بېګانه و تملق احترامونو تېرشو
د خپل وطن د ورانولو انعامونه تېرشو
د دې مظلوم ولس شلېدلي ګرېوانونه تېرشو
د نورو لمسې اوامر او الهامونه تېرشو
دا د وحشت توري تياري او ماښامونه تېرشو
کينې شوې تېرې حسدونه عنادونه تېرشو
دښمنۍ هېرې کړئ کوو د محبت خبرې
د تېرېدنې د انصاف او عدالت خبرې

## ۱۳- رباعي (څلوريزه)

(رباعي) هغه شــعر ته ویل کېږي چې دوه بیتونه ولري چې څلور مســرې کېږي. په رباعي کې اکثر لومړی دوهمه او څلورمه مســره یوه قافیه لري او دریمه مســره ازاده وي، او کله کله څلور واړه مسرې یو ډول قافیه لري. د خیال تسلسل یې یو وي او په څلور مې مسرې کې زیات ټینګار وي. بېلګه یې دا ده:

چې نظر مې اندېښـــنو کې راولاړ شـــي
لـه ســـوچـونـو پـه غـمـونـو کې لـتـاړ شـــي

دې دنـيـا ســـره زه داســـې نـا بـلـد يـم
لکه لیـــرې کلیـــوال چې ښـــار تـــه لاړ شي

## ۱۴- قطعه (پاړکی)

(قطعه) هغه شــعر ته ویل کېږي چې دلومړي بیت د دواړو مســرو قافیه سره یو شان نه وي او د شعر د ټولو بیتونو وزن، څپې او د دوهمو مسرو قافیې سره یو ډول وي؛ لږ ترلږه دوه بیته وي او زیاته هم راتلای شي. بېلګه یې داده:

نشـــتـه څـه پـه کور د پښـــتنو دتکلف پـه نوم
بـس یـوه ډالـۍ لـه مـیـنـې ډکـه ولـولـه لـري
رنګ یې د اخلاص په هر کلي کې خپره ټنده ده
وس کې یو ســو کړک او د ترخو چایو پیاله لري

یادا:

نصـر د شـیخ (حمید) لودي[۱] زوی چې کله د ملتان پاچا شـو نو د اسماعیلي فرقې په ګروهه[۲] کېدو تور پرې ولګېد. دهغه د تره زوی د شــیخ (حمید) وراره شــیخ (رضــي) ورته دا پاړکی ولیکه او ورویې لېږه:

د الـحـاد پـه لـور دې تـر پـلـل[۳]
ګـروه دې زمـونـږ وکـور او ه[۴]
مـوږ رونـلـی پـه زیـارنـه[۵]
تـا پـه تـورو تـوراوه

لـرغـون ولـې ګـرو هـېـدلـې
چـې دې ګـوښـی اړاوه
هـغـه ګـروه دې اوس اړه کـړ[۶]
چـې پـلـرو دې رڼـاوه
لـودي سـتـا پـه نـامـه سـپـک شـو

---

۱- شیخ حمید لودي د (الپتګین) او (سبکتګین) په وخت کې له: (۳۱۵) هجرې ق نه تر (۳۹۰) هجرې ق پورې د ملتان پاچا ؤ.
۲- ګروهه: عقیده.
۳- ترپلل: لاړې، تېوپ دی کړ، وتښتېدې.
۴- ګروه: عقیده. وکوراوه: باطل کړ.
۵- رونلی: روڼ کړی پاک کړی.
۶- اړه کړ: وادې ړاوه.

که هر څو مو درناوه
نصره نه مو یې له کهاله[1]
لودي نه یې په کاوه[2]
زموږ رغاده ستا د ګروهه[3]
د ورځلوی په رغاوه[4]

کله چې شیخ نصر ته د (رضي) دا پاړکی ورسېد هغه ورته ځوابي پاړکي کې داسې وکښل:

د الحاد په تور تورن سوم
زه لرغون خو ملحد نه بم
زما د ښنه هسې تورا کړي[5]
که ملحد یم د دښنه یم
له اسلامه نه ترپلمه
تورانو څخه په ترپله یم
ګروه مې هغه لرغونی د ی

---

۱- کهاله: کورنی.
۲- کاوه: کړنه، کولو.
۳- رغا: بېزا ري.
۴- ورځلوی: ورځ لوی: لویه ورځ، قیامت. رغاوه: بېزاری.
۵- دښنه: دښمنان. تورا: تور، تهمت، افتراء.
٦- لرغونی: پخوانی.

اوس هم کروړ په لرغونه یم[1]
د اسلام پرهسک به ځلم
وتورانو ته تیاره یم
د لودي زوی سنتي یم
د حمید له لوړ کهاله یم
توراني دښمن چې وايې
زه له ګروهه په اړه یم
دابې تور تاسې دروهوي[2]
زه مؤمن ستاسې په تله یم
د دښنو ویناوې مغبره[3]
زه لودي یمه څو زه یم[4]

## ۱۵- بولله (قصیده)

(قصیده) چې پښتوکې ورته بولله ویل کېږي هغه پرله پسې شعر دی. چې د موضوع تسلسل پکې رعایت شوی وي، لږ تر لږه شپاړس بیتونه لري او زیات یې پوله نه لري، خو تر یو سل او پنځوسو پورې ویل شوي دي؛ قصیده مطلع او مقطع لري، د مطلع

۷- کروړ : سخت، محکم.
۱- دروهوي : (له دروهل نه دی) غولول.
۳- مغبره : مه اوره . نغوږل : اورېدل . مه نغوږه : مه اوره.
۴- پټه خزانه : ۷۰- ۷۴.

د دواړو مسـرو قافيه يې يو شـان او د نورو ټولو بيتونو د دوهمې مسرې قافيه د مطلع په څېر وي. بېلګه يې داده:

غوري ښکارندوی بن احمد د پسرلي په هکله دا قصيده ويلې ده:[1]

د پسـرلي ښـکلونکي بيا کړه سـينګارونه[2]
بيـا يې ولونـل پـه غرونو کښـې لالونـه[3]
مځکه شـنه لاښـونه شـنه لمنې شـنې سـوې[4]
طـيلسـان زمـردي واغـوسـتـه غـرونـه
د نيسـان مشـاطي لاس د مچېـدو دی[5]
مـرغـلـرو بـانـدی وښـكـلـل بـڼـونـه[6]
د غـټـو لـو جـنـډی خـانـدي ورېـدي تـه[7]
زرغـونـو بـڼـو کـې نـاخـي زلـمـي جـونـه
لکـه نـاوې چې سـورټـيک پـه تـنـدي وکـا

---

۱- پټه خزانه: ۵۰.

۲- ښکلونکي: ښکلوونکي، ښايسته کوونکي.

۳- ولونل: وشيندل، خپاره کړل، وکرل.

۴- لاښونه: کمرونه (واړه غرونه) مفرد يې لاښ دی.

۵- نيسان: د پسرلي مياشت ته ويل کېږي. چې له اپريل او حمل سره سمون خوري. مشاطي: له مشط نه دی چې عربي کې ږومنځ ته ويل کېږي لکه ږومنځ چې وېښتان ښکلي او منظموي، د نيسان مياشت ځمکه ښکلې کوي. مچېدو: ښکلولو.

۶- وښکلل: ښکلي کړل.

۷- غټول اورېدی: د ګلونو ډولونه دي. جنډی: ګل.

هسې وګانل غټولو سره پسولونه[1]
مرغلرې چې اورو وخونو لیه[2]
په ځلا یې سوه رانۍ خپاره دښتونه
زرغونو مځکو کې ځل کالکه ستوریه
چې پر هسک باندې ځلېږي سپین ګلونه

سپینې واورې ویلېده کاندې بهېږي
لکه اوښکې د مین په ګرېوانونه
هر پلورنې ولې بهاندې خاندي[3]
له خوښیه سر وهي له سینګړونه[4]
هر پلود ګلووږم دی لونلی[5]
ته واراغله له ختنه کاروانونه[6]
د مسیح په پو به مړو ژوندون بیا موند[7]
پسرلی مګر مسیح سو په پوکړونه

۱- وګانل : ښکلي کړل، ګانه یې وراغوسته، وپسولل . پسولونه : ګانې، مفرد یې (پسول) دی.
۲- وخونولیه : وخونولې، وشیندلې.
۳- بهاندې : بهېدونکې.
۴- له خوښیه : له خوښۍ . سینګړونه : د کاږ او ډبرو ځمکه.
۵- لونلی : شیندلی، خپور شوی.
۶- ته وا : ته به وایې . ختن : چین کې یو ځای دی چې په ښکلا شهرت لري.
۷- پو : دم، پوکول . پوکړونه : پوکولو، دمونو.

لـه مړو خـاورو يې اغلى ګـل راويوسـت[1]
وچ بـېـديـا او غـريـې کـړلـه جـنـتـونـه
سـړى جاجي چې رامشـت کړ رامشـتګرو[2]
ګـهـيـځ چـوڼـي چې پـه بـڼ وکـا ږغـونـه[3]

پـه بربڼ چې ږغ د چوڼيو نغوربېده سـي[4]
تـه وا چنـدي سـره پېودي اشـلو کونـه[5]

دا اوږده قصيده ده چې مونږ په همدې بسنه کوو.

## ۱۶ - مستزاد

دا هغه شعر دى چې لومړى (مسره) نيم بيتى يې اوږد او دوهم يې لنډ وي او د دواړو قافيه يو شـان وي؛ د اوږدونيم بيتيو (مسـرو) څپې او وزن سـره يو وي او د لنډو څپې او وزن سـره يو وي. کله دوهم، کله دريم او کله هم له دې زياتو بيتونو نه وروسـته د سـر قافيه راغبر ګېږي او کله نه راغبرګېږى، دوهم لنډنيم بيتى دلومړي اوږده نيم بيتي خوند او رنـګ ور زياتوي. مستزاد کومه ځانګړې

---

۱- اغلى: ښکلى. راويوست: راو ايست.
۲- جاجي: (خج په اول جيم) فکر کوي (جاجل) فکر کول. رامشت: ساز او سرود.
۳- ګهيځ: سبا. چوڼي: بلبلې يا عام مرغان.
۴- بربڼ: لوى باغ، بڼ باغ او بربڼ په پخوانۍ پښتو کې لوى باغ ته ويل کېږي. نغوربېده: اورېده.
۵- چندي: شاعران. پېو: اوبدل شوي. اشلوکونه: شعرونه.

موضوع نه لري او هر مطلب پکې نغښتل کېدی شي. بېلګه يې داده:

تعليم چې چېرته نه وي هلته جوړه شي تالا — په غم شي مبتلا
چې کرکه وي نفرت له مدرسې او له مکتب — بچي شي بې ادب
موقوفه ترقي ده په قلم او په کتاب — د علم دي اسباب
نړۍ ده د بې شمېره نعمتونو يو لوی ډېر — مونږ وڅکه يو غرېب
دې ځمکه کې پراته دي معادن او زراعت — صنعت او تجارت
چې پوهه لياقت وي دی په خاوره کې نعمت — رااوځي په حکمت
وګړي ترې راباسي پټ رازونه په ارټ — څوک ژاړي په ورټ ورټ
ناپوهه ناخبره دلته ژوند کوي عبث — ذلت کې مُلَوّثْ
بې کاره بې عمله په ژوندون کې وي محتاج — ناروغه بې علاج
څوک اوسي په دنيا کې په خوښۍ او په فرح — څوک نه وي هيڅ مطرح
چا وګټل وياړونه چې يادېږي په تاريخ — چا وګاټه توبيخ
چا وخوړل ناولي او ناپاکه لکه مچ — چا وخوړل ښه کوچ
څوک هر څه نه خبر هرې خبرې ته غوږ بوڅ — څوک هر څه نه وي لوڅ
سپېڅلي دي هغوی چې وي سپېڅلی يې دريځ — رڼا لکه ګهيځ

چې زيار ګالي کو ښښ کوي هغوی وګڼه ښاد — ودان کړه خپل هېواد
په کار کې د همت او د نخوت مه کوه ځنډ — عزت وګټه پنډ
ښاغلی ننګيالی تل د عفت کوي نفاذ — سر کښې د هر محاذ
بې پتو بې غيرتو باندې مه کړه اعتبار — د ښو کوه تکرار
په کار د سپکاوي کې د چا مه کوه ملاتړ — چې سر دې نه شي ځوړ
ناپوهو احمقانو ته دې مه وايه خپل راز — خبر به شي غماز
چې وس دې نه وي هسې چاته مه ورکوه غبېږ — تيتېږي دې ورمېږ
انسان دی په سيرت نه په صورت نه په لباس — هر شی لري مقياس

په تمه او په سوال د چا نه مه غواړه معاش     کوچنی لکه خاشخاش

بې ځا یه بې مورده چې کوي هر چا ته ګواښ     ما تېږي سر او غاښ

مخلص اوسه هغوی سره چې وي پکې اخلاص     عوام وي که خواص

د هیچا په حقوقو باندې مه لره غرض     لازم به شي عوض

منحط نه شې وسط شه مُنْضَبَطْ شه مُسَلَّط     دا ومنه فقط

مشران وي که کشران وي د هر چا کوه لحاظ     بد مه وایه الفاظ

د نورو برخه مه غواړه په خپله شه قانع     د حق اوسه تابع

بې داغه شه پخپله په چا مه لګوه داغ     ونه وایې درواغ

په سمه لاره درومه چې ونه کړې انحراف     ترې مه کوه خلاف

وفا کوه په عهد په وعده او په میثاق     د مال کوه انفاق

چټې پټې خبرو کې ونه کړې اِنهماک     شه پاک او همتناک

په پت او نوامیسو شه مین لکه پتنګ     غورځنګ کوه په ننګ

خوږې خبرې وکړه چاته مه کوه کنځل     پردی وي او که خپل

اقدام کوه په مینه او په عزم اهتمام     هر شي ته کوه پام

هر چاته د انصاف او عدالت کوه تلقین     په ښه پوره یقین

احسان کوه چې جوړه شي ټولنه در ته بڼ     کوه په کې اتڼ

عمل چې پکې نه وي خطا نه شې په القابو     خبر شه له ادابو

پخپله مېړنی شه چاته مه کوه اسره     کره شه هم پوره

ښوونه او روزنه کړي نسلونه عقلاء     بې علمه اغبیاء

عادل شه معتدل شه په چا مه کوه تېری     روزي دې شه بری

هر چا سره کوه معامله کې اساني     همدغه ده ځواني

بې ګټې بې سببه ډېرې مه کوه خبرې     کړه لږې خو ژورې

دوستي پا له خپلوي پا له حلاله خوره مړۍ     وړۍ دې شه شړۍ

بل ډول يې دادی:

# دوه مخـی شیـطـان

نـه دين او نـه غيرت لري ملګری د دولـت يې
اخته په لوی ذلت يې
ريښـتيا خبره نه کړې په درواغو چې عادت يې
اخته په لوی ذلت يې
د خير کارو نه نه کوې دښـمن د مسـلمان يې
ملګری د شيطان يې
روا دې په کار نه دي همېش غواړې ناروا ته
اخر به شې رسوا ته
هېر کړی دی قيامت دی بې ضميره بې همت يې
اخته په لوی ذلت يې
بې نوره قواره د ماشـوما نو د خندا شـوې
بې شرمه بې حيا شوې
د سـولې سـره وران يې په ټولنه کې خلل يې
د ږيرې لاندې غل يې
نفرت يې رذالت يې ضـلالت يې حماقت يې
اخته په لوی ذلت يې
وګړو ته څرګند يې هر څوک وايي چې حقير دی
مرداري خوري کجير دی

ټکي کوي ټکماره ټو ل پېغور يې جهالـت يې
اخته په لوی ذلت يې
دوه مخيه منافقه همېش خوښ په شـرارت يې
وفا نه کړې بې پت يې

شـرمېږې نه سـپی مخيه په بد خوی کې ځناوره
بخيل يې خېټوره
دښمن دې مسلم دوست دی ورته هر وخت ملامت يې
اخته په لوی ذلت يې

# ۱۷ - ځانګړی

ځانګړی مونږ دمستزاد ډولونو ته ورزياتوو. داهغه مستزاد دی چې يواځې دوهم لنډ نيم بيتي يې ټول په يوه قافيه اولومړی اوږد يې ازاد وي، مطلع کله لري اوکله نه. بېلګه يې داده:

رائـحـئ چــې سـره درومــو پــــه رڼـا د بـصيــرت  پـه ميـــــنه پـه الـــفت

پــه ژمنو پـه تړون بـانـدې لاسـونـه سـره ورکړو  د پت او د عفـــــــت

په يون او په غورځنګ او په اخلاص باندې روان کړو  کـــــاروان د حقيقـت

چې ګرم په همت او ليا قت او په غيرت شـــــي  سنــګـر د شـهـامـت

انصــاف باندې قايمه کړو دې سـتونزو د بشــر ته  قضــا د عـــدالـــت

جـوتـو دلايـلـو بـانـدې وښـــايـو انســان تـه  د عـلـم اهــمـيـت

کوښــښ وکړو چې زده کړي ولســو نه او نســلو نه  مـضـمون دعزيمت

چـې ورکـړو دې وګـړو تـه پـه عـزم او پــه حـزم  احسـاس دطهارت

چې بوخت شـــي په وحدت په اخوت او په مېړانه  خـدمت کې دملت

پيــدا بـه پـه نخوت او حميـت او حريـت شـــي  پـه زړه کـې حرارت

څرګند به په ســينو کې په عزت او اســتغنا شــي  صفت د قنــاعــت

چې ورک نه شي بدل نه شي او رنګ نه شي له هيچا  فطــرت د صداقت

جوت بـه شـي لمونځونو اودسـونو او روژو کې لـذت د عبـادت

دوستـــان به سره یو شي بریالی به محبت شي ناکام به شي نفرت (۱)

# ۱۸ – لنډیزه

(لنډیزه) پښتوکې زمونږ نوی ابتکاردی. داهغه شعردی چې لومړی مسره یې لنډه اودوهمه یې اوږده وي، خودلنډی په ډول لومړی نهه اودوهمه د یارلس څپې نه وي، کله مثنوي غوندې دهربیت دواړه مسرې سره یوه قافیه وی اوکله دغزل په څېر له مطلع پرته یوائې دوهمې مسرې سرترپایه سره یوه قافیه او لومړی ازاده وي. مطلع کله لري اوکله نه.

بېلګه یې داده:

وکـړه د وفـا طـلـب لـوړ د لـیـاقـت او مـعـرفـت او اعـتـنـا طـلـب

چـا څـخـه وېـرېـږه مـه سـمـه لاره ونـیـســه هـدف څـخـه ســتـنـېـږه مـه

---

[1] _ نفرت: کرکه.

څوک چې ربغړې شـي — کار یې سـرته نه رسـېږي نیمه لار کې سـتړې شـي
کار په خپل نصـاب کوه — مـه پـه کې افراط او مـه تفریط او مـه اعجـاب کوه
وکـړه د حـکـمـت ویـنـا — ښـه پـه بصـیرت او صـــداقـت او پـه الفـت ویـنـا
څوک چې اسـتغنا کوي — نـه لـه چـا نـه تـمـه کـړي او نـه د چـا پـروا کـوي
اوســه په ثبات کې تل — ټینـګ د شـهـامـت او عزیمت پـه التفـات کې تـل
څوک چې نـازولـی وي — توره پـکې نـه وي او نور هسـې پړسـېـدلی وي
پـام کوه غـاوِر نـه شـې — وګوره شـاعره چې شـعرور متشـاعر نـه شـې
بـدو کې ککړ نـه شــې — ځوږ نه شـې ګیدړ نه شـې حیا څخه لغړ نه شـې
څوک چې امتیاز غواړي — ویې کړه تمیز چې حقیقـت او کـه مجـاز غـواړي
چا کې چې اخلاص نه وي — ښـې درتـه وایـي د عـزت پـکـې خـواص نـه وي
هر څه پـه احتیـاط کوه — ښـه یې پـه تـدبیر او پـه رباط او اِنضـبـاط کوه
مـه ګرځـه مُنحَط سـره — ګرځـه لـه اَقسـط او لـه اَحوط او لـه اوسـط سـره

اوســه غضـنفر غوندې — پـاک لکـه ګوهر او ښـه ثـابـت لکـه دغر غونـدې
دوســتـه ابـتـکـار کوه — حق بـانـدې اقرار او لـه بـاطـل څخـه انکـار کوه

بل ډول یې دادی:

څـوک چـې جـنـایـت کـوي — کـار د حمـاقـت او د قسـوت او د ذلـت کوي(۱)
چـا کـې چـې وحشــت وي نـو — هر چـا څخـه کرکـه او نفرت او شـکـایـت کوي
چـا کـې چـې شــذوذ نـه وي — مینـه محبـت کوي هر چـا سـره الفت کوي
څـوک چـې تـوریـالـی وي نـو — توره پـه جرات کوي هر کـار پـه شـجـاعت کوي
څـوک چـې نـنـګـیـالـي وي نـو — ننګ کوي غیرت کوي میدان کې شـهامت کوي
څـوک چـې نـومـیـالـی وي نـو — پت سـاتي عزت سـاتي شریف وي شرافت کوي
ړنګ چـې یـې فـطـرت نـه وي — پربکړه په انصـاف او قضـاوت په عدالت کوي

---

۱_ قسوت: سختي.

| | |
|---|---|
| وګـنـه عـاقـل يـې چـې | هر څه په حجت او په نوبت او په فرصت کوي |
| وي پـتـمـن ريښـتـيـن هغـه | څوک چې په وينا کې وضاحت او صراحت کوي(۱) |
| مـلاتـړي سـبـقـت کـوي | عزم پـه حکمت او بصيرت اوفراست کوي(۲) |
| يـون پـه طـهـارت کـوي | ښـه يې پـه عفت او حرارت او کرامت کوي |
| صـبـر انـابـت کـوي | تمه چاته نه کړي استغنا او قناعت کوي |
| درومـي ابـتـکـار سـره | نه يې پرېږدي ښه يې په دقت او لياقت کوي |
| مـخـکـې لـه شـروع څـخـه | دوست سره صحبت او مشوره او مصلحت کوي |
| هـر عـمـل دلـيـل غـواړي | څوک چې دليل نه لري نو پوه شه چې بدعت کوي |
| ډېـرې ورتـه مـه وايـه | دوسته که پوهېږي څوک همدومره کفايت کوي |

# ۱۹ - ازاد نظم

ازاد نظم د غربي نړۍ اختراع او ابتکار دی چې شرقي نړۍ ته يې هم سرايت کړی دی او اوس دلته هم راوج شوی دی، پښتنو شاعرانو هم اوس د دې تقليد پيل کړی دی، تر دې چې ځينې شاعران که يواځې نه وي نو اکثره شعرونه يې له همدې ډوله وي. ازاد نظم يې ځکه بولي چې د قافيې، رديف، د مسرو تر منځ د سېلابونو تناسب او نورو شعري ضوابطو او قيودو څخه ازاد وي او يواځې يو ډول اهنګ لري او څپې يې د شاعر په خوښه وي.

---

۱ـ صراحت : څرګندوالی.
۲ـ بصيرت : فراست، هوښياري، بيداري.

ازاد نظم د شاعر یو اهنـګ لرونکی نثر دی چې د خیال او سوچ د طوفاني څپو له جوش نه په نابیره توګه په دا سې ازادۍ سره راوځي چې د شـعر په مشـهورو قالبونو کې د جوړښـت هیڅ اند ته پکې اړتیا نه پیښـیږي؛ له همدې امله یې ځینې مسـرې لنډې او ځینې اوږدې وي.

ازاد نظم یوائې د تخیل او پیغام نوم دی چې شاعر یې د سوچ او اغېزې له څپو څخه د ژبې او قلم څوکې ته لېږي. بېلګه یې دا ده:

یوه هسکه څپه راغله
وه له وینو څخه جوړه
په سرونو وه پسوللې
په ننګونو
په زګېرویو
په غېرت اوپه ښندنو
را روانه په غورځنګ وه
امېدونه ورسره وو
یو پیغام ؤ پکې نغښتی
یوانعام ؤ پکې نغښتی
په هوډونو وه پسوللې
په دردونو
تیندکونو
هجرتونو کړاوونو

ډکه پکه وه له ژمنو
ورته ټینګ نه شو
په مخکې
فولادي غوندې بندونه
د غرور لوړې ماڼۍ
د هوس دنګ منارونه
ټول نسکورشول
ړنګ پر ځمکه
یوه هسکه څپه راغله
وه له وینو جوړه شوې
په سرونو وه پسوللې
راروانه په غور ځنګ وه
د هرڅاڅکي دا اعلان ؤ
چې په امرد قران
او په مینه د څښتن
زمونږ یون دی
پرمخ درومو
نه تمېږو
نه اودرېږو
نه وچېږو
پولې پېژنو لرو یې

اوتم ځای مو هم لېدلی
نتیجه مو پېژندلې
له تورتم څخه تېرېږو
هلته لنډه لړه وږاندې مو موخه ده
د سبا روښانه څرک دی
لکه لمر دی
لا روښانه
هلته پولې دي د عدل
مونږ په منځ کې یې
تمېږو
وړاندې نه ځو
او اودرېږو
بیا وچېږو
هلته ښه سمسور یو بڼ دی
چې په مونږه زرغونېږي.

## ۱۹- مُعَرّیٰ (لغړ) نظم

(معریٰ) په لغت کې لغړ او بربنډ ته ویل کېږي او په اصطلاح کې د ازاد نظم په څېر له قافیې او ردیف څخه لغړ وي؛ ازاد نظم سره دا

توپیر لري چې مسرې یې سره هم وزنې او په څپو کې سره برابرې وي. کله کله یې په تصـاد في توګه دوه مسرې په قافیه کې سره برابرې راشي. دا هم د ازاد نظم په څېر د غر بیانو له پلوه راغلی دی. بېلګه یې دا ده:

داد لـفـظـونـو شـاعـر
دا لـه مـعـنـا څـخـه پـاک
دا د هـوس ګـوډاګـی
د تـزویـرونـو مـجـنـون
دا د دروغـو مـیـن
پـه نـالـیـدلـې لـیـلا
پـه فـرضـي زلـفـو پسـې
دا جـعـلـي لـوغـړن
دا د اهـونـو منـځ کـې
د فـریـادونـو پـنـځ کـې
اودزخـمـو لـه پـاسـه
او دا پـه ویـنـو لـتـاړ[1]
لـه تـن جـلا سـرونـه
او داسـپـېـره مـخـونـه
لـه اوښـکـو ډکـې سـترګـې

۱- لتاړ: ککړ.

هیــڅ ورتــه نــه ښـــکــارېــږي!؟

## ۲۰ - ترانه

ترانه هغه له ولولو نه ډک شــعر ته ویل کېږي چې کوم تېولنیز مطلب یا مطالب پکې رانغښــتي وي او پــه غبرګو اوازونو لوســـتــل کـېږي . لکــه ملي ترانه،ملي ســرود ، دوطن ترانه اوداســـې نورې ... بېلګه یې داده :

## ملي تـرانـه

دا وطن ازاد دی، دا زمونږ هېواد
دا زمونږ يو کوردی، غواړو يې آباد

دا افــغــانــســتــان وطـــن
دا زمـونـږ دی ځـان وطـن
دا مــو د ګــوزران وطــن
دا رابـانـدې ګـران وطـن

دا زمونږ میراث دی، دا زمونږ بنیـاد
دا زمونږ يو کور دی، غواړو يې آبـاد

دا د شـــجـاعـت وطــن
نــنـګ او دغـيـرت وطــن
دا مــو د عــزت وطــن
دا دی د الــفــت وطـــن

دې کې مونږ اوسـېږو،دې کې مونږ يو ښـاد
دا زمونږ يو کور دی، غواړو يې آبـاد

دا د شـــرافــت وطــن
دا د کــرامــت وطــن
دا مـو دی د پـت وطـن
دا مــو امــانــت وطــن

دا زمونږ يقين دی، دا مو اعتمـاد

دا زمونږ يو كوردی، غواړو يې آباد

دا د ننـګـيـالـو وطـن
دا د تـوريـالـو وطـن
دا د نـومـيـالـو وطـن
دا د پـتـيـالـو وطـن

دا د رب انعام دی، دا زمونږ مراد
دا زمونږ يو كوردی، غواړو يې آباد

دا مـو د ايـمـان وطـن
دا مـو د قـرآن وطـن
دا د مسـلـمـان وطـن
دا د هـر افـغـان وطـن

دې کې مونږتاريخ لرو،ننګ اود جهاد
دا زمـونږ يو كور دی، غواړو يې آبـاد
دامـود ژونـدون وطـن
دامـوپـوهـنـتـون وطـن
دامـودی روغـتـون وطـن
دامـودسـمـون وطـن
غـواړي مـسـلم دوست پـکـې،هـرغـلـيـم بـربـاد
دازمـونـږ يـوكـوردی ، غـواړويـې آبـاد

يالكه دا :

پاتې ميرا ثه د پلار نيكونو لوړ نشـان زمونږ
دا افـغـانسـتـان زمـونږ

دا افـغـانسـتـان زمـونـږ

تل دې وي وحدت پکې سـو له امنیت پکې

مـیـنه او الـفت پـکـې ننګ پکې غیرت پکې

بل دې وي مثال پکې د علم او عرفان زمونږ

دا افـغـانسـتـان زمـونـږ

دا افـغـانسـتـان زمـونـږ

غواړو مونږ قلم کتـاب دا وطن ګلاب ګلاب

هر مهال حسـاب حساب ظلم ته یو کلک ځواب

تـل دې وي وګړو تـه د مینې ارمغان زمونږ

دا افـغـانسـتـان زمـونـږ

دا افـغـانسـتـان زمـونـږ

دا د مسـلـمان وطـن دا مو د قرآن وطن

دا مـو د ایـمان وطـن دا د هر افغان وطن

دا د ا بدالي او غزنوي اومیرویس خان زمونږ

دا افـغـانسـتـان زمـونـږ

دا افـغـانسـتـان زمـونـږ

تل دې وي خدمت زمونږ علم بصـیرت زمونږ

توره شـجـاعـت زمونږ دین زمونږه پت زمونږ

دا د ازادۍ او خپلواکۍ دی ګلستان زمونږ
دا افغانستان زمونږ
دا افغانستان زمونږ

دا زمونږ ځګر وطن دا مو دی سنګر وطن
دا مو لکه ا مر وطن پاتې یو اثر وطن
تل دې مېړني او توریالي وي وارثان زمونږ
دا افغانستان زمونږ
دا افغانستان زمونږ

دوست یې ابادي غواړي دوست یې وداني غواړي
دوست یې خوشحالي غواړي دوست یې سوکالي غواړي
دادې وي ښېرازه ترې لوګی شه مال اوځان زمونږ
دا افغانستان زمونږ
دا افغانستان زمونږ

عروضي اودپواني شعرکې مُشَجّر هم دی چې یو شعر دونې په څېر لیکل کېږي. خوماته ډېر تکلف بریښي اوعام وکړي یې نه شي لوستی نوځکه ورته اړتیا نه وینم.

# دوهم
# ملي شعرونه

هر قوم، ولس او ژبه ځینې ځانګړي مشخصات او جلا ځانګړتیاوې لري؛ پښتو ژبه د شعر په میدان کې ځینې داسې شعرونه لري چې هغه د دې ژبې مشخصاتو او ځانګړتیاوو کې راځي، چې نورې ژبې یې نه لري، او دا شریک ولسي او ملي شعرونه دي. ډولونه یې دا دي:

۱- لنډۍ.
۲- ټپیزه.
۳-چار بیته یا بدله.
۴- لوبه او بګتۍ.
۵- نارې.
٦- نیمکۍ، سروکۍ او ټیکۍ.

## ۱-لنډۍ

(لنډۍ) د پښتو هغه ځانګړی (۲۲) څپیز ملي شعر دی چې لومړی نیم بیتی یې (۹) او دوهم یې (۱۳) څپې وي، او د غږ راښکلو او اوږدولو لپاره یې په اخر کې (مه) یا (نه) راوړل کېږي. لنډۍ کومه ځانګړې موضوع نه لري او هر مطلب پکې بیانېږي، هره لنډۍ ځانګړې موضوع وي.

لنډۍ یې هم له همدې امله بولي چې په یو بیت او لنډو الفاظو کې لوی مطلب نغښتی وي؛ زیاتې د تورې، مېړانې، مینې، جانان، بېلتون، دیدن او موزیکي په هکله ویل شوې دي.

د لنډیو ویونکی معلوم نه وي او زیاتې د ښځو له خوا ویل شوې دي.

لنډۍ نور نومونه هم لري لکه: ټیکی، ټپه او مسره.

د ټپې د تسمیې د لامل په هکله مختلفې رایې او توجیه ګانې وړاندې کېږي، خو زما په اند ټپه ځکه ټپه بلل کېږي، چې ټپ په پښتو کې زخم ته ویل کېږي او د ټپې اغېزه دومره زیاته وي چې یا زړه ټپي کوي او یا له ټپي زړه نه را وځي. بېلګې یې دا دي:

جانان مې سر پر وطن کېښود
په تار د زلفو به کفن ورته ګندمه

که په میوند کې شهید نه شوې
خدایګو لالیه بې ننګۍ ته دې ساتینه

موزیګی بیا په خند راغی
په لمنګۍ کې چا توتان ورکړي دینه

د موزیګي شکېدلیه کټه
چې زه دې لنګه ټینګوم بازو دې ځینه

توتې ټوټې په تورو راشې
د بې ننګۍ اواز دې رامه شه میینه

تورې وهه برى به مومې
که برى نه وي ځوانان تل په تورو مرینه

تور په رنجک سور شې په وینو
سالم په تن بې ننګه رامه شې میینه

توتې ټوټې په تورو راشې
چې پرهارونه دې ګندم خوله درکومه

جانانه ښه شو چې زخمي شوې
زه به دا خپله غاړه هسکه ګرځومه

جانان مې جنګ کې توره وکړه
ځکه همزولې راته کوښې سمویمه[1]

ږغ شو پرکټ جانان یې راوړ
زړه مې په پرشو چې په شانه وي زخمونه[2]

مورې لنډۍ توره مې راکړه
پردین غزا ده زه خپل ځان شهیدومه

که زه مېړه وم ځان به جار کړم
پښتون پېغور د بې ننګۍ نه قبلوینه

د توریالیو خوندې ژاړي
د سپومزیو خوندې سترګې تورويــنه

---

۱- کوښې : پنې، پېزار.
۲- پر : توپ.

زلمي ولاړ توره تر ملا دی
غزا له ځي په خپل وطن سر ورکوينه

سنګر د ځان په وينو سور که
چې شاوخوا پر تا غا ټول زرغونه شينه

هلک به ولې توره نه کړي
ترنيمايې سنګره زه ورسره ځمه

سر مې له تن ځنې جلا کئ
که مې پګړۍ د بې ننګۍ ترلې وينه

توري به نه کړونو به څه کړو
چې موشبدې د پښتنې رودلې دينه

په تور ټوپک ويشتلی راشې
د بې ننګۍ اواز دې رامه شه مينه

ترپ له ميدانه په کار نه دی
په بدنامۍ کې سپي موزيان په تبه مرينه

په پښتو ملي او ولسي شعرونو کې د لنډیو شمېر ډېر زیات دی او د راټولولو کار یې تر اوسه لا نیمګړی پاتې دی.
د پښتو ټولنې له خوا د لنډیو یوه ټولګه په ۱۳۳۴هـ ل کې چاپ شوې ده؛ (سلمی شاهین) د (روهي سندرې) په نامه د پښتو لنډیو یوه ټولګه په دوه ټوکو کې را ټوله کړې ده چې پېښور پښتو اکاډمي چاپ کړې ده. ځینو نورو هم څه ناڅه پښتو لنډۍ راټولې کړې دي خو تر اوسه هیڅوک په دې نه دی موفق شوی چې د پښتو ټولې او یا اکثره لنډۍ راټولې کړي؛ دا ځکه چې د پښتو په دې پلن ټاټوبي کې ګڼې پرګنۍ قبیلې او ولسونه میشته دي؛ د هر سړي، ښځې، زلمي، پېغلې، بوډا او بوډۍ په حافظې کې داسې لنډۍ شته چې له نورو سره نشته؛ له همدې لامل له مخې پښتانه که ټول نه وي نو اکثر یې شاعران دي.
نو ځکه لنډۍ د ټولو پښتنو شریکه ملي پانګه ګڼل کېږي.

## ۲-ټپیزه

ټپیزه دې وروستیو کې دپښتوپه ولسي شعرکې ورزیاته شوې ده. دا په اصل کې په لنډۍ کې یو بدلون دی. دوهمه مسره یې هماغه دلنډۍ (۱۳) څپیزه ده، اوپه لومړۍ (۹) څپیزې یې درې نورې (۹) څپیزې مسرې ورزیاتې شوې دي. اکثره پخوانیو لنډیو باندې درې نورې نوې مسرې ورزیاتوي.

زما په اند داکارښــه دی چې پښــتوته دشــعریونوی ډول ورزیات شــو، خوداکار ناســم برېښــي چې په زړو لنډیو نوې مســرې ورزیاتوې. دا داســې شــوه لکه په زړو دېوالونو چې نوې پســخې وهې !!!.

داکار دلنډیو لرغونتوب له منځه وړي. نوښــه داده چې دهمدې ټپیزې په جوړښــت نوي شــعرونه ولیکل شــي اوزړې ټپې روغې پرېښودل شي.

همدارنګه له دوه و (۲) نه واخله تر اوو (۷) مسروپورې ورزیاتېدی شي.

دټپیزې بېلګه داده:

چې دسنګرپه لاره نـه ځي
تورې اوسپر په لاره نه ځي
دپـوخ بـاور پـه لاره نه ځـي
دپـېـغـمبـر پـه لاره نه ځـي
بنګړي دې واچوي منګي دې وړي راوړینه
ځوانان سنګر ته په خنداځي
په خوشحالۍ اوبې پروائـي
نـه پاتې کـېږي خامخـاځي
یوځلې نه ځي په بـیابـیاځـي
داښـځـنـوکي کورکې تل ترتـلـه وینه
چې نــه ادب لـپـاره ډب وي

نه پوهنتون اونه مکتب وي
نـه دکـتاب قـلـم طـلـب وي
وګـړي غـيـر مــهــذب وي
هغه ولس کې به خواري وي اوغمونه

# ۳-بد له يا چاربيته

(بد له) د پښــتو شــعر ډېر لرغونی ډول دی چې وروســتنيو په (چاربيته) نومولی دی. چاربــيته د محتواله مخې يوه موضوع په پرله پســې توګه څېړي، او د جوړښــت له مخې يوه مطلع لري چې کله يو بيت کله درې مسرې او کله دوه بيتونه وي او وروسې بندونه راځي. د ســر بند ته کســر او پېرو هم ويل کېږي. لږ تر لږه څلور مسرې وي او زياتې يې هم راتلی شي؛ زيات يې اته مسرې وي چې څلور بيتونه کېږي او چاربيته هم له همدې امله ورته ويل کېږي. د چاربيتې د هر بند پای د سر بيت ته ورستنېږي او په ډېرې چستۍ او چالاکۍ ورته راګرځي، په ځانګړي انداز کې لوســتل کېږي چې اورېدو پورې اړه لري. ځينې چاربيتې د مســتزاد په شــکل يو اوږد او يو لنډ نيم بيتی لري، بيا د هر بند پســې د ســرد کســر په ډول قافيه غبرګېږي او د ســر پېرو ورســره ويل کېږي. کله د پېرو او بندونو طاق نيم بيتي ســره يوه قافيه وي او جوخت نيم بيتي ســره

یوه قافیه وي، کله د پېرو دواړه نیم بیتي خپلوکې یوه قافیه نه وي خو له هر بند نه وروســته یو بیت د کســر په څېر اول نیم بیتي ســره اول، او دوهم نیم بیتي سره دوهم یوه قافیه لري.

کله د پېرو دوه نیم بیتي په یوه قافیه او دوه په بله قافیه او نور بندونه درې درې مســرې په یوه قافیه او څلورمه د پېرو مســره ورسره غبرګېږي.

بېلګې يې دا دي:

(۱)

پــه ســـور غــر بــل راتــه نــن اور دئ
وګــړ يــه جــوړ راتــه پــېــغــور دئ
پــر کــلــي کــور بــانــدی مــغــل راغــی
هــم پــه غــزنــي هــم پــه کــابــل راغــی

غښـــتــلــيــو نــنــګ کــړئ دامــو وار دئ
مــغــل راغــلــی پــه تــلــوار دئ

پــه پښــتــونــخــوا کــې يــې نــاتــار دئ
پــر کــلــي کــور بــانــدې مــغــل راغــی

ادمرغي غښتليو راسئ
پرنڅ ولاړ د پښتو نخوا سئ

توري تېرې غشي تر ملا سئ
پر کلي کور باندې مغل راغئ

زلمو په غشو کړئ وارونه
د تېرو تورو ګوزارونه
ور وړاندې کړئ خپل تټرونه
پرکلي کور باندې مغل راغی[1]

یا لکه دا:

(۲)اوښکې مې څاڅې په ګریوان یو وار نظر که پرما
راسه ګذر که پرما

دمینې اور دې زما زړګی وریت په انګار کینا
ښې تارو نار کینا[2]

---

۱- پټه خزانه: ۱۰.
۲- تارونار: نری وچ.

خو د به ويلېږم چې مې زړه پر تا مفتون کينا
ځان مې زبون کينا
اوښکې مې څاڅي پر ګرېوان يو وار نظر که پر ما
راسه ګذر که پرما

وکه نظر زما پر حال چې پروت رنځو ر يمه تل
په ويرنا سور يمه تل
له زړه مې څاڅي وينې سور په وينو خپل يمه تل
په اور جلبل يمه تل
اوښکې مې څاڅي پرګرېوان يو وار نظر که پرما
راسه ګذر که پرما[1]

يالکه دا:

(۳)بېلتون دې زور دئ تر لېمو مې سهار نم څاڅي
لکه شبنم څاڅي
داسره ياقوت مې په لمن کې ستا د غم څاڅي
په غم الم څاڅي

---

۱ - پټه خزانه: ٦٦.

ګوره لیلیٰ باران د اوښو ستا په چم ثاڅي[۱]
څنګه پر چم ثاڅي[۲]

راغله لیلا په شینکي خال نڅا په ګلو کوي
په سرو منګولو کوي
سهار چې وځي سیل کا ، ږغ به بلبلو کوي
ګل په اوربلو کوي
ملالې سترګې یې کاته په ویرژلو کوي
زیب په کجلو کوي
د ژوبل زړه وینې په هر ګړۍ هرد م ثاڅي
لکه شبنم ثاڅي

یا لکه دا:

(۴)کـم بـخـتـه مـکـړه پـر دنـیـا ډونـګـونـه
کــه دې زړه غــواړي د جــنــت ګــلــونــه

کـم بـخـتـه مـوږ یـو مـیـلـمـانـه پـر دنـیـا
وطـن مــو بـل دی اخـر ځـو بـه رشـــتـیـا
هـم بـه بـــه بـدســـي رامـعـلـوم پـه عـقـبـا

۱- چم: (په زوره کي) کلی کوڅه.
۲- چم: طرز، چل، ترتیب.

نــو لــه ســـره اور كــئ پــه امــان ځــانــونــه

كــم بــخــتــه مــه كــوه حــرام چــې بــد دي
چــې كــړي حــرام هــغــه بــاطــن كــې دد دي
اعــمــال يــې تــولــه پــه عــقــبــا كــې رد دي
پــه لــويــه ورځ بــه يــې وي تــو ر مــخــونــه[1]

# ۴-لوبه او بګټی

لوبه او بګټی د ملي او ولسي شعر یو ډول دی. ځينې شاعران د لوبې او بګټی تر منځ توپير كوي او ځينې يې نه كوي. زما په رايه دواړه يو شی دي او دا هم ويلی شو چې دا دواړه د چاربيتې يو ډول دی.

لو به د مســـتزاد په ډول د مطلع يو اوږد او بل لنډ نيم بيتی لري وروســته هر بند دوه يا درې او يا څلور نيم بيتي په يوه قافيه، وزن او بحر وي، وروســې بيا د مطلع په قافيه د مســتزاد په ډول يو بيت راځي او مطلع ورسره غبرګيږي.

---

۱- پټه خزانه: ۱۵۸.

بېلګه يې داده:

په تا کې دي پرتې دتاريخونو خاطرې
د کوټ ښکلې درې

شين بڼ يې د کښتونو
ګلبڼ يې د ګلونو
کلا د لوړو غرونو
لمنه دسپين غره يې ستا زړه پورې منظرې
د کوټ ښکلې درې

بچي دي ننګيالي دي
پتمن او نوميالي دي
بې دربغه توريالي دي
پتمنې دې وي ستا ټولې جرګې اومشورې
د کوټ ښکلې درې

ته کور د اتلانو
هم ځاله د زمريانو
هم مور يې د غازيانو

دپت اودعزت اودوياړونو منارې
د کوټ ښکلې درې

محتاجو ته امسا يې
مشهوره په سخا يې
ښاغلو ته وفا يې

مشهورې مېلمه پالې ستا اوجرې او ستا دېرې
د کوټ ښکلې درې

لرغونې د عظمت یې
د ننګ او د غیرت یې
مـرکـز د مروئـت یـې
د پــت اود عـــزت اود ویـــاړونـــو مـنـــارې
د کوټ ښکلې درې

تاریخ د مېړنو یې
ولس د پښتنو یې
وطن د نـښانو یې
د دوســـت په زړه وربېږي ســـتا یادونه نندارې
د کوټ ښکلې درې

# ۵-غاړې یا نارې

غاړې یا نارې د پښتو شعر یو ځانګړی ډول دی، او دا هغه غږونه او غږانګې دي چې د منشورو کیسو په منځ کې په لوړ غږ ویل کېږي، او د ځینو قبیلو ځانګړې غاړې هم وي. لکه د کاکړو غاړې، د بنوڅیو غاړې، د تیراوالو غاړې...... بېلګې یې دا دي:

(۱)

کـه یون دئ یون دئ، مخکې بېلتون دئ[۱]
لـه کسـي غره څخـه، ځي خرښـبون دئ[۲]

کـه وروره وروره، خـرښـبـون وروره
تـه چې بېلـتـون کړې، زمـا ویـرتـه ګوره
چې ځې مـرغـي لـه، تـورې کـرغـې لـه[۳]
هـمـزولـي پـاتـه، ځـې څـه بـرغـې لـه[۴]

---

۱- یون: ژباړه یې مخکې تېره شوې.
۲- کسي: د سلیمان غره ته د (کسي) غر ویل کېږي. خرښبون: د کسي غره د پښتنو د پلار عبدالرشید لمسی او د سړبن زوی ؤ
۳- مرغه: د کندهار په ختیځ سهیل کې له ارغستانه د کسي غره پورې ځای دی.
کرغه: وچه بې وښو ځمکه.
۴- برغه: بې ګټې، خوشې، بې کاره.

د خدای د پاره، خرښبون یاره
چې هېرمونه کړې، زمونږ کهول واړه

زړه مې رپېږي، یارمې بېلېږي
بېلتون یې اور دی، ځان په سوځېږي[1]

(۲)
ته د سفر په لوري لاړې
د زېړو ګلو باغ دې چاته وسپارنه
ځواب:
زه د سفر په لوري لاړم
د زېړو ګلو باغ مې خدای ته وسپارنه

## ۶ -نیمکۍ، سروکۍ او ټیکۍ

(نیمکۍ) د پښتو د ولسي شعر یو ډول دی چې مطلع یې یو مستزاد بیت لري چې (سروکۍ) یې بولي؛ وروسته د هرو دوو بیتو منځ کې یوه لنډۍ ور اچول کېږي چې (ټیکۍ) یې بولي؛ ترتیب

۱- پټه خزانه: ۱۸.

يې په دې ډول دی چې له سروکۍ نه وروسته د ټيکۍ يا ټپې اوله نهه څپيزه مســره ويل کېږي؛ ورپســې د ســروکۍ دوهمه نيمکۍ مســره غبرګېږي؛ بيا د ټيکۍ دوهمه ديارلس څپيزه مســـره ويل کېږي؛ بيا د سروکۍ دوهمه نيمکۍ مسره ورسره غبرګېږي؛ بيا ســروکۍ پوره ويل کېږي. او په همدې ترتيب تر اخره ويل کېږي. بېلګه يې دا ده:

پګړۍ په سرکه شمله نېغه زما ياره
د مينې طلبګاره
هــلــک بـــه ولې تـــوره نـــه کـه
د مينې طبګاره
ترنيـــما يي ســنګره زه ورسره ځمه
د مينې طلبګاره
پګړۍ په سرکه شمله نېغه زما ياره
د مينې طلبګاره

# هایکو

(هایکو) د جاپاني شعر یو ډول دی چې د جاپان په شاعرانو کې مشهور او په زړه پورې دی.
پښتو کې لا رواج نه دی خو ځینو شاعرانو د ازمېښت په توګه پرې پیل کړی دی. د جوړښت له مخې هایکو درې مسرې لری. چې بېلګه یې داده:
ښاغلی نایاب وایې:

د شعر په فن باندې به نه پوهېږې
هرې مسرې سره به سرخوځوې
وایې به لویه فلسفه ده پکې

ځینې اوله او دریمه مسره لنډه او پنځه څپې او دویمه اوږده اوه څپې بولي، خو ځینې یې داسې نه بولي او د څپو ځانګړی جوړښت ورته نه ټاکي.
مادعربي شعر دمطالعې په ترڅ کې ځینې دا سې شعرونه وموندل چې (هایکو) سره سمون خوري. بېلګه یې داده:
یو عربي بدوي (کوچي) خپلې ښځې نه دکوروالي مطالبه وکړه هغې ور ته وویل چې میاشتینۍ ناروغي مې ده؛ کوچي ور ته

**وويـل: پـه هغې بلې لارې بـه لاړشــم... هغې ورتـه وويـل: الله نه وويريږه.**

**کوچي وويل:**

**بلى وَرَبّ الْکَعْبَهْ وَالاَسْتَار**

**لاَهْتکَنّ حَلَقَ الْحَتَار**

**قَدْ يُؤخَذُ الْجَارُ بِظُلْمِ الْجَار**

**(ولې نه؟ د کعبې او د کعبې د غلافونو په رب قسم چې زه به هرومرو د... د کړۍ ســپکاوی کوم. او دا ځکه چې کله کله يو ګاونډی د بل ګاونډي په ظلم نيول کېږي).**

**دا او دا سې نور شعرونه په عربي کې شته. او دا په دې دلالت کوي چې د (هايکو) په ډول شعرونه عربو کې د جاهليت له زمانې راروان دي. نو دا سمه نه ښکاري چې دا ډول شعر دې يوائې د جاپانيانو ځانګړتيا وګڼل شي.**

# ځینې ادبي اصطلاحات

## کیسه، حکایت او د استا ن

د تېرې زمانې د تاریخي پېښو او اشخاصو یادونه او د واقعیتونو یاد خیالي او فرضي کردارونو بیانول کیسه، حکایت او داستا ن بلل کېږي.

چې پښتو کې په شعر کې ډېرې ویل شوې دي. لکه:

د مجنون او لیلا، یوسف او زلیخا، ادم خا ن او درخانۍ. او داسې نورې چې عصام، فیاض، ملانعمت الله، برها ن او نورو لیکلې دي.

مونږ دلته د بېلګې په توګه یوه کېسه کاږو چې زرغونې[1] ویلې ده:

اوربدلې مې کیسه ده
چې له شاتو هم خوږه ده

---

۱ - زرغونه یوه عالمه، لیکواله او شاعره ښځه وه، د ملا دین محمد کاکړ لور او دسعدالله خا ن نورزي ښځه وه. د سعدي بوستا ن یې بشپړ پښتو ته ژباړلی ؤ او نور اثار یې هم پرې ایښي دي، ښکلی خط یې درلود . پټه خزانه: ۱۹۲-۱۹۴.

د اختر په ورځ سهار
بایزید چې ؤ رویدار

له حمامه راوتلئ
په کوڅه کې تیرېدلئ
ایرې خاورې چاله بامه
راچپه کړلې نا پامه
مخ او سرې سوکړ
په ایرو په خاورو خړ
بایزید په شکر کښو سو
د خپل مخ په پاکېدوسو
چې زه ور یم د بل اور
چې په اور کې سم نسکور
له ایرو به څه بد ورمه
یا به لږ شکوه کومه
هو پوهانو ځان ایرې کړ
له لوینې یې ځان پرې کړ
څوک چې ځان ته ګوري تل
خدای ته نه سي کړای کتل
لویي تل په ګفتار نه ده
لوخبره په کارنه ده

تواضع به دې سر لوړ کا
تکبر به دې تل ځوړ کا

# نامه

(نامه) هغه د نثر يا د شعر کتاب ته ويل کېږي چې کومه ځانګړې موضوع پکښې څېړل شوې وي. شعري نامه کوم ځانګړی جوړښت نه لري خو اکثره د مثنوي په هيئت ويل شوې دي.
نامه د يو کتاب شکل وي چې سر تر پايه يې بنسټيزه او محوري موضوع يوه وي او نور عناوين د همدغه محور تر شاوخوا څرخېږي، په نثر او شعر دواړو کې ليکل شوې دي خو زياته برخه يې په شعر کښې ده. تر ټولو زياته مشهوره د فردوسي شاهنامه ده چې په فارسي کې ليکل شوې ده او شپېته زره بيتونه لري.
په پښتو کې هم زياتې نامې ليکل شوې دي. لکه:
جنګ نامه، نورنامه، سکندر نامه، ظفرنامه، نادرنامه، بادشاه نامه، شمائل نامه، خوابنامه، د حافظ شاهنامه، او تر ټولو زياتې نامې خوشحال ختک ليکلې دي چې په لاندې ډول دي:
طب نامه، سواتنامه، خط نامه، فالنامه، باز نامه، ساعتنامه، فضلنامه، فراقنامه، اخلاقنامه، او دستار نامه. بېلګې يې دادي:

حافظ د احمدشاه ابدالي په هکله نا مه ليکلې چې نوم يې (شاهنامه احمدشاه ابدالي) دی؛ هغه د حمد، نعت او د خلفاو له مناقبو نه وروسته په ديباچه کې وايي:

ته زما په شعر کړه ګوش
چې بلند شه په داهوش

بيا څو بيته وروسته وايي:

احمدشاه مې حال بيان که
داچې سير يې د جهان که

بهادر دی شېرافګن
تېغ يې تېر شو تر د کن

نه يې رستم ليدلی جنګ ؤ
مشهور چې په دا رنګ ؤ

نه خبر اسفند يار ؤ
د بادشاه چې کارزار ؤ

چې دا جنګ ؤ ځای په ځای
د بهادر پولاد خای

مابيان که په تفصيل
په خپل ځای په قال او قيل

دی سکندر کشور کشای دی
وجهان ته راهنمای دی

شومولدیې خراسان
په مزاج ؤ عالي شان

په طالع د خسروان ؤ
د سرتاج یې په کېوان ؤ

د تخت ځای یې قندهار شو
تمام ملک پرې لاله زار شو

خوشحال خان ختک د طبنامې پیل داسې کوي:

په دارو کې چې ښه نیت وي
دارو نه وي عبادت وي

عبادت په روغ صورت شي
ګڼې کله عبادت شي

ماد طب په کتابونو
نظر کړی په بابونو

چې هر رنځ لره فایده ده
هلیله ده هلیله ده

که درست عمر یې څوک خورینه
هیڅ علت په نه ورځینه
هلېله شفاد تن ده
هم د مرد ده هم د زن ده
په ترتیب یې خوره هوشیاره
مصالح ورسره یاره

## دېوان

ځینې داګني چې: (دېوان) معربه (عربي کې مستعمله فارسي) کلمه ده ، او ځینې نوریيا وایي چې دانا سمه ده او داعربي کلمه ده.
جمع یې (دواوین) او (دیاوین) ده.
په لغت کې راټولو شوو کاغذي پاڼو، هغه کتاب چې د لښکر نومونه پکښې لیکلي وي او د یوه هېواد د ټولواک او پاچا دفتر ته ویل کېږي.
څوک یې چې فارسي بولي هغوی وایي: د تسمیې وجه یې داده چې د ایران یوه پاچا کاتبانو ته وویل چې:
د خلکو حساب ورته په درې ورځو کې ورکړي، یوه ځانګړي ځای کې یې کښېنول او هغوي په خپل کار پیل وکړ. څه وخت وروسته

پاچا ورښـکاره شـو، کاتبان د ډېرې يېرې له کبله داسـې زرزر او چالاک خوځېدل لکه لېونيان، نو پاچا چې کله هغوي وليدل ويې ويل: «اى ديوانه» «دا ليوني». نو د هغو کتابونو او هغه ځاى نوم «دېوانه» شو. عربي کې ترې «دېوان» جوړ شو.

ماچې پلټنه وکړه داراته جوته شـوه چې دا فارسـي نه بلکې عربي کلمه ده. اوس په عربي، پښتو، فارسي، او اردو کې ددېوان کلمه مستعمله ده.

په اصـطلاح کې د يو شـاعر د شـعرونو هغه ټولګې ته ويل کېږي چې له «الف» څخه تر «ى» پورې د ټولو قافيو شعرونه پکښې د هجا دتورو په ترتيب راټول شـوي وي. لکه د عبدالرحمن بابا دېوان، د عبـدالحميـد دېوان.... ځينو ښـــاغليو چې کلـه قـافيې نـه دي موندلي، نود رديف توري يې ورسـره ګڼلي دي. خو دا ناسـمه ده. دېوان کې يوائې د قافيو توري ګڼل کېږي اوقافيې کې دروي په توري حســـاب نه کېږي، بلکې د قافيې اخري توری ګڼل کېږی. د قافيې دکلمې داخري توری نه ونيســـه له روي نه مخکې لومړي ســـاکن پورې ټول توري د قافيې ګڼل کېږي. او په دې کې اخري توری ددېوان په ترتيب کې ګڼل کېږي.

# کلیات

کل په لغت کې ټول یا دډېرو اجزاو او افرادو مجموعې ته ویل کېږي.
او په ادبي اصـطلاح کې (کلیات) د یوه لیکوال، ادیب، او شـاعر د ټولو نثري یا شـعري لیکنو مجموعې ته ویل کېږي؛ له همدې امله کلیات د یوه لیکوال، ادیب او شـاعر له مرګ نه وروســته راټولېږي چې د هغه د ژوند ټول نثري یا شـعري لیکنې پکښــې ځای شي.
پښـتو کې په کلیاتو زیات کارنه دی شـوی په دې وروسـتیو کې پرې پیل شوی دی چې لانیمګړی دی.
لکه د خوشــحال کلیات، د حمزه کلیات، د الفت کلیات، د غني کلیات او داسې نور.

# د شاعر ډولونه

شاعر د شعر ويلو له مخې په پنځه ډوله دی:

**۱** - (**مُـفْـلِـقْ**) **يا** (**خِنديذ**): هغه شاعر ته ويل کېږي چې په شعر کې ډېر داسې بديع صَنايع، ابتکارات او عجائب منځ ته راوړي چې ډېر په زړه پورې وي، انسان ورته تعجب کوي او حېرانېږي.

**۲** - (**شــاعر**): هغه شــاعر ته ويل کېږي چې د شــعري قواعدو او ضــوابطو موافق ښــه شــعرونه وايي او د مفلق درجې ته لانه وي رسېدلی.

**۳** - (**شُـوَيْـعِـرْ**): هغه شاعرګوټي ته ويل کېږي چې په شعر کې يې ځه محا سن نه وي خو شاعر بلل کېږي او څه ناڅه شعري ا ستعداد لري.

**۴** - (**شَــعْــرُوْر**): هغه بې کاره شاعروټي ته ويل کېږي چې ډېر بې خونده شعرونه وايي او په اورېدلو يې انسان تنګېږي.

**۵** - (**مُـتَـشَـاعر**): هغه کم عقل شاعرنما وي چې په تکلف سره څه راجوړوي او دشعر بوي هم پکې نه وي خو ګومان کوي چې شاعر يم.

# پای

د الله تعالی شکر دی چې د دې کتاب د کښلووس يې راکړ. هغه جل جلاله نه غواړم چې د پښتو ادب سره اړيکو لرونکو ښاغلو ته مې څه ګټه رسولې وي او د دې ميدان په ځغاسته کې نه يوائځې داچې پاتې نه يم راغلی، بلکې تر ډېرو د مخه شوی هم يم.
د کتاب ماخذونه په خپلو خپلو ځايونو کې ليکل شوي دي او د عربي اصطلاحاتو ماخذونه: (جواهر البلاغه)، (مطول) او (مختصر المعاني) دي. هيله لرو چې لوستونکو په غور لوستی وي، ځان يې پرې پوه کړی وي او بيا يې په دې هکله څه ويلي وي، ځکه: (څوک چې په څه نه پوهېږي دښمني ورسره کوي).

عبدالرحيم مسلم دوست
پېښور
۱۲/ ۹/ ۱۴۲۱ هـ سپوږمېز
۱۹/ ۹/ ۱۳۷۹ هـ لمريز

# لړلیک

| ګڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|